د پوهنې وزارت

د ښوونیز نصاب دپراختیا او ښوونکو د روزنې معینیت

ښوونکو د روزنې لوی ریاست

# دښوونکو او سرښوونکو لپاره

# د مطالعې مواد

کال۱۳۹۹

د پوهنې وزارت

د ښوونیز نصاب دپراختیا او ښوونکو د روزنې معینیت

ښوونکو د روزنې لوی ریاست

# دښوونکو او سرښوونکو لپاره

# د لوستنې مواد

**تدقیق کوونکی**: ښووندوی عبدالحق رحمتی او ښوونمل ګلاجان صدیقی

# پیغام

دکرونا (کوویډ۱۹) ناروغۍ خپرېدا په دې وروستیو کې نړیوالې اندېښنې راپارولې دي، نو د افغانستان اسلامي جمهوري دولت د نوموړې ناروغۍ د خپرېدو د مخنیوي په پار جدي وقایوي تدابیر نیولي دي، لکه د ښوونځیو او ښوونیزو بنسټونو ځنډول (تعطیل)؛ ځکه د پوهنې وزارت د خپل وظیفوي مکلفیت پر بنسټ زده کوونکو، ښوونکو او ښاغلیو مدیرانو ته د ښوونې او زده کړې لپاره بدیلې طرحې برابرې کړې دي.

د ښوونکو او مدیرانو دوامداره مسلکي پراختیا د پوهنې وزارت له عمده دندو څخه ګڼل کېږي، چې په عادي شرایطو کې د زده کړو او نورو ملاتړو کړنو له لارې ترسره کېږي؛ خو په اوسني حالت کې د دغه کار لپاره د پوهنې وزارت، دښوونکو او مدیرانو ډېرو هلو ځلو ته اړتیا ده، چې باید د دوی لخوا ونه سپمول شي. د مسلکي پراختیا یوه نوښتي طریقه د (ځانی زده کړې) د موادو منظمه مطالعه ده.

د (ځانی زده کړې) زده کړیز مواد، چې د مطالعې لارښود، د مطالعې د اغېزمنتیا د ارزونې کړنلاره او د ځانی لوست مواد په کې شامل دي، داسې برابر شوي، چې په منظمې مطالعې سره یې ښوونکي، سر ښوونکي او مدیران کولی شي، مسلکي پوهه ترلاسه کړي او د خپلې دندې اړوند عمومي مسلکي وړتیاوو ته وده ورکړي.

له ټولو ملاتړو کسانو چې دا زده کړیز مواد یې چمتو کړي مننه. له ښوونکو، سرښوونکو او مدیرانو څخه تمه کېږي، چې د ځنډ مودې (تعطیل) څخه په ګټه اخیستنه، د دې موادو او نورو منابعو چې لاسرسی ورته لري په لوستلو سره خپله مسلکي او تخصصي پوهه پراخه کړي، چې په راتلونکي کې زده کوونکو ته اغېزناکه زده کړه او ښوونه وړاندې کړای شي.

**دوکتور محمد میرویس بلخي**

**د پوهنې وزارت سرپرست**

## فهرست

# د ښوونکو او سرښونکو د ځاني زده کړو او ارزیابی لارښود

دا لارښود د ځاني زده کړو د تګلارې او د هغو غوره لاس ته راوړنو په موخه ترتیب شوی دی او له ښاغلو ښوونکو، سر ښوونکو او مدیرانو څخه هیله کیږي چې د ښوونځیو د رخصتیو څخه په ګټې اخستنې سره دا کتاب او مواد په دقیق ډول ولولي او وروستی ارزونې ته چې د پوهنې وزارت له خوا اخیستل کیږي چمتووالی ونیسی.

## موخه

د کتابونو د مطالعې او ښوونیزو مواد له لارې د ځاني زده کړو زده کړې په طریقې سره د ښوونځیو د ښوونکو، سرښوونکو او مدیرانو مسلکي پراختیا .

## د ښوونکو او سرښوونکو لپاره زده کړیز مواد

داکتاب د پوهنې وزارت لخوا هغه زده کړیز مواد دي چې ستاسو لپاره وړ ګڼل شوي او مطالعه یې جبري ده. په دې کتاب کې دغه موضوعګانې راغلي دي: پیداګوژي، د زده کوونکو پېژندنه، د مرستندویه ښوونیزو موادو چمتو کول، د ټولګي تنظیم، د ښوونیزو پلانونو جوړول، د ارزونې ډولونه، د نوي نصاب په اړه معلومات او د ماشومانو فزیکي وده، ټولنیز، رواني او ذهني پړاوونه.

## اړینې کړنلارې

۱- کتاب/ د مطالعې مواد د ولسوالۍ د پوهنې له امریت یا اړوندې ښوونیزې حوزې نه ترلاسه کړی.

۲- ددی کتاب د بشپړ لوستلو وروروسته/ هر مضمون چې تدریسوی د هغه لپاره کلنی تدریسي پلان او همدارنګه د ټول کال لپاره ساعتوار درسي پلانونه برابر کړی، کله چې د ښوونځیو د ځنډ مهال (تعطیل ) پای ته ورسیږي، د ښوونیز نظارت غړي یا ښوونکو د روزنې د ریاست استادان جوړ شوي پلانونه ارزوي.

۳- د مکافاتو په پار د کتاب او مطالعه شویو موادو ملي او معیاري ارزونه کیږي؛ نو نوموړي مواد داسې مطالعه کړی چې د ارزونې تېرولو ته بشپړ چمتو واوسی.

۴- کوښښ وکړئ چې د ښوونځیو د ځنډ (تعطیل) پر مهال هغه مضمونونه په اغېزناکه توګه مطالعه کړی، چې تدریسوی یې، نو پیچلي او نا څرګند ټکي یې یادداښت کړی، کله چې د ځنډ (تعطیل) مهال پای ته ورسیږي، تاسو د خپل یادداښت له مخې خپلې پوښتنې د تعلیمي نظارت له غړو سره شریکې کړی (د ښوونېز نظارت غړي ستاسو وړاندېزونه او پوښتنې راټولوي، د حل لارې یې پیداکوي او وروسته یې له تاسو سره شریکوي)

۵- د خپلې مطالعې تفصیلي راپور د یوې مقالې په بڼه ولیکی او د نورمال لوستونو د پیل پر مهال یې اړوند د ښوونېز نظارت غړي ته وسپاری.

**د ښې لوستنې په پار لارښوونې**

۱- د خپلې مطالعې لپاره موخه وټاکی او هغې موخې ته د رسېدو په پار د وخت، ځای او موضوع له پلوه پلان جوړ کړی.

۲- کوښښ وکړی چې د مطالعې پر مهال او له هغې څو شیبې مخکې په اړونده موضوع کې د پوښتنو لپاره وخت ځانګړی کړی او هغو پوښتنو ته د مطالعې په جریان کې ځوابونه پیداکړی.

۳- د مطالعې مهم او په زړه پورې ټکي ځان سره یادداښت کړی، هغه په منظم ډول ډلبندي کړی، څو د مطالعې په پای کې یې د مقالې په بڼه ولیکلی شی.

۴- د مطالعې پر مهال د بیاځلې لوستلو لپاره د مهمو مطالبو لاندې په پنسل سره یوه کرښه وکښی.

۵- د مطالعې لپاره ارامه ځای وټاکئ، چې حواس مو راټول وي.

۶- کوښښ وکړی چې په خوشالی او نورمال حالت کې مطالعه وکړی ځکه حواس مو راټول وي.

۷- له مطالعې څخه موخه د کتاب ژر خلاصول نه دي، بلکې په ښه ډول د مطالبو زده کول او لوستل دي.

۸- که په کومې کلمې یا جملې ونه پوهېدئ، هغه همداسې مه پرېږدئ، په جلا پاڼه کې یې ولیکئ، له مطالعې وروسته یې د لغات په سیندونو(ډکشنرۍ) کې وپلټئ یا د ښوونکو د روزنې له استادانو او یا هم د ښوونېز نظارت له غړیو یې وپوښتی.

۹- کوښښ وکړی د کتاب ټولې برخې، لکه: انځورونه، چارټونه، جدولونه، د څېرکېو لنډیزونه او داسې نورو د کتاب د متن له مطالعې وروسته مطالعه او په غور وګوری، ځکه دا برخې د کتاب د مطالبو د ښه پوهاوي لپاره راوړل شوې دي.

۱۰- د کتاب او سترګو واټن د نه ستړي کېدو او ناسمې مطالعې د زیانونو د مخنیوي په موخه په پام کې ونیسئ (په اټکلي ډول ۲۵ سانتي متره باید وي) هېڅکله د مطالعې پرمهال خپل سر کتاب ته مه ټیټوئ همدارنګه په سم ځای کې کېنی.

۱۱- د مطالعې پر مهال د موضوع پر پلي کېدو فکر وکړی.

۱۲- که شوني وي، د مطالعه شویو مطالبو په هکله له لېوالو همکارانو او ملګرو سره بحث وکړی، څو لوستل شوي موضوعات مو ذهن کې ښه کېني.

## د ارزونې کړنلاره

د ښوونکو، سرښوونکو او مدیرانو د ځاني زده کړو زده کړې د دورې ارزونه د شواهدو یا د دندې په ترسراوي کې د ښه والي پربنسټ ترسره کیږي، چې مکانیزم یې په دې کړنلارې کې په لاندې ډول توضیح کیږي.

۱. ښوونکي او سرښوونکي دې د هرې اونۍ په پای کې د ځاني زده کړو د پرمختګ راپور ولیکي او اړوندې ادارې ته دې وسپاري، خو د عامې روغتیا د وزارت لارښوونې دې هم په پام کې ونیسي، د ښوونځي مدیر/ آمر دې د ځان او اړوندو ښوونېزو کارکوونکو د ځاني زده کړو د پرمختګ راپور په منظم ډول د اړوندو ښوونېز نظارت غړو ته وسپاري.

۲. د ځاني زده کړو په ارزونه کې د ښوونځیو د ښوونکو، سرښوونکو او مدیرانو ګډون اړین دی، دغه ارزونه لیکنۍ بڼه لري، پوښتنې یې تړلې (څوځوابه) دي. څوک چې له اړین عذر پرته ارزونې ته حاضر نه شي، له هغو مکافاتو څخه چې په پام کې دي محرومیږي.

۳. د ښوونځیو په هر ښوونکي، سرښوونکي او مدیر باندې لازمه ده چې د ځاني زده کړو د مطالعې له موادو چې (زده کړه یز مسایل او وړاندېزونه په کې شامل دي) اخري راپور جوړ کړي. دا راپور د نظارت د غړو له خوا کنترولیږي چې دا هم د ارزونې یو سند ګڼل کیږي.

۴. هر ښوونکی باید د هغه مضمون چې تدریسوي یې منظم او مشرح درسي ساعتوار پلانونه جوړ کړي، دا هم د ارزونې لپاره یو سند ګڼل کیږي.

۵. ښوونکی باید هغه مضمون چې تدریسوي یې منظم مطالعه کړي. له مطالعې څخه یې یو راپور ولیکي، په دې راپور کې خپلې ستونزې ذکر کړي ترڅو په راتلونکي کې د هغې د حل لپاره د مسلکي ودې پلانونه جوړ کړي او د حل لپاره یې لازم تدبیرونه ونیسي.

۶. د ځاني زده کړو د مطالعې د موادو (د ښوونکي او سرښوونکي د مطالعې کتاب) او هغه مضمون چې تدریسوی، د مطالعې راپورونه، ساعتواره درسي پلانونو د دوسیې سپارل اړین دي، ځکه د ښوونېز نظارت غړی یا د تربیه معلم استادان یې تایېدوي.

۷. مدیر/ د ښوونځي آمر په ښوونځي کې د ځاني زده کړو د همغږۍ مسوول دی.

## پیداګوژي

## پوهه، مهارتونه او طرزتلقي (ذهنیت)

داغیزمن تدریس لپاره درې اصطلاحګانی ډیرې مهمې دي: پوهه، مهارت او ذهنیت.

**پوهه** : یعنې دحقایقو پیژندنه، په نظریاتو او مفاهیمو پوهیدل دی، مثال: د افغانی پاچایانو یا د مختلفو هېوادونو د پلازمینو(پایتختونو) نومونه پیژندل حقایق دي. خو دا راز پوهه د عمومي نظریو یا مفاهیمو په اړوند هم وي. مثلاً: د

شپې او ورځې د دوران، د نوم او فعل دګرامري توپیرونو پوهه او نور. دغه ډول پوهه ساده معلومات نه، بلکې مفاهیم وي.

**مهارتونه:** یعنې دیوه عمل د سرته رسولو وړتیا. مهارتونه هم دوه غوره ډولونه لري. یو ډول یې فزیکي مهارتونه لکه د الفبا دتورو د لیکلو او رسمونو د کښلو وړتیا. بل ډول یې فکري مهارتونه دي، لکه د ریاضي په هکله د شمیرلو د موضوع په اړه، د یوې ښې مقالې د لیکلو وړتیا او د یوې موضوع په اړه د منطقي بحث کولو وړتیا.

**طرزتلقي(ذهنیت):** یعنې د مهمو مسائلو په اړه احساس. د مثال په توګه ادب او همکاري د طرزتلقي څخه عبارت دي. همدا راز زغم ،دقت (ځیریدنه) د نورو احساساتو ته درناوي، د مشرانو درناوي، په وړو ماشومانو شفقت او نور هم له طرزتلقي څخه شمیرل کیږي. منفي تلقي ګاني هم لکه بدبختي، بدبیني، نفرت، بې ادبې، جنجالي توب او نور. په لنډ ډول تلقي د ښو او یا بدو خواته دروني او قلبې تمایل دی چې د دیني عقیدې، روزنیزو او محیطي عواملو تر اغیز لاندې د سړي په زړه او ذهن کې را پیدا کیږي او وده کوي. روزنه او زده کړه د تلقي په جوړیدو او بدلولو کې اغیزه لرلای شي.

ښه ښوونه او روزنه له ماشومانو سره مرسته کوي چې دغه درې واړه ( علم یا پوهه، مهارتونه او مثبت ذهنیت ) اړخونه یې وده وکړي.

### د ښوونې او روزنې موخې

د غربت له منځه وړل، ټولنیزکیدل او د ارزښتونو انتقالول د ښوونې او روزنې ځینی مهمی موخې وي. داسې ګڼل کیږي چې ښوونه اوروزنه ټولنیز پرمختګ رامنځته کوي او په دې وسیله د فقر په له منځه وړلو کې مرسته کوي. د یو فرد د تعلیم یافته کولو معنی داوي چې اقتصادي تولید یې زیات شي او ټولنیزې ښیګڼې پکې پیدا شي. په عمومي توګه ښوونه او روزنه ځوان نسل ته د لیک لوست او حساب تدریس لازم ګڼې او هم دا چې په اخلاقي معیارونو برابر عمل وکړي او د ټولنې په اقتصادي وده کې ونډه واخلي.

په یو ملت کې د ښوونې او روزنې موخې په لاندې کټیګوریو تنظیمولای شو:

- هغه موخې چې د یو هېواد په دین او کلتور پورې اړه ولري.
- هغه موخې چې په ملې پرمختګ پورې اړه ولري.

- هغه موخې چې دیو فرد د مهارتونو او استعدادونو په وده پورې اړه ولري.
- هغه موخې چې دکورنۍ او ولس په وده پورې اړه ولري.

**دښوونې او روزنې د موخو په برخه کې یو شمیر نورې نظریې په لاندې ډول دی :**

- دیو هېواد راتلونکې نسل ته دکلتور ورلیږدول.
- د یو هېواد په دیني ارزښتونو پوهول.
- د ملي اقتصادي پرمختګ لپاره د ماهر مسلکي پرسونل روزل.
- د ماشومانو د اخلاقي ارزښتونو وده ، داسې چې یوه هوسا ټولنه رامنځ ته کړي.
- د بشري سرچینو د ودې په وسیله د هېواد عمومي پرمختګ.
- د ټولنیز پیوستون او ملي هویت تقویه.

**په ښوونځیو کې د زده کړې مختلف اړخونه په لاندې ډول دي:**

- له ماشومانو سره د فکر کولو د ودې په باب مرسته کول.
- دګټورو مهارتونو زده کړه (لوستل، لیکل، او حساب)، ترڅو وکولای شي چې د هغو څخه په ژوند کې کار واخلي - یوازي د ښوونځي د کتاب په زده کړه باندې اکتفا نه کول.
- له ماشومانو سره مرسته کول چې دوی د لوستلو او لیکلو له مهارتونو څخه د کار اخستلو په وسیله نوي معلومات او مهارتونه تر لاسه کړي او خپلې نظریې خلکو ته وویلای شي.
- له ماشومانو سره مرسته کول څو دوی نوښتګر، تحلیلوونکي او پلټونکي افراد شي.
- د نظریو یا موضوعاتو د بحث کولو او د نورو خبروته د غوږ نیولو زده کړه.
- د موضوعاتو د فکر کولو او تحلیلولو او هم د ستونزو د آوارولو زده کړه.
- له ماشومانو سره مرسته کول چې دوی دا زده کړې چې تبلیغات (افواهات) له حقایقو څخه جلا کړای شي.
- د چاپیریال، ټولنې، ملت، نړۍ، خلکو او نورو په اړوند زده کړه.
- دروغتیا، سولې، صبر او زغم عدالت په اړوند زده کړه.

- د خپل دین اوکلتور زده کړه.
- د نورو خلکو او هېوادونو د مذهبونو او فرهنګونو په اړه پوهیدل.

مهمه خبره داده چې ښوونه او روزنه یوازې دکتاب د پاڼو یا دول نه بلکې په جوماتونو، کورنۍ, ټولنه او ورځني ژوند کې ترڅو چې ژوندي یو، تر سره کیدای شي.

## زده کړه څه معنی لري؟

د زده کړې لپاره ډیر تعریفونه شته، خو د عملي تدریس لپاره کولای شو ووایو چې: یو ماشوم به هغه وخت یو شي زده کړې وي چې لاندې درې حالتونه په کې موجود وي: ماشوم په معلوماتو، مهارت او طرز تلقي وپوهیږي.

ماشوم درس، معلومات، مهارت او طرز تلقي خپل ذهن ته سپارلي وي.

ماشوم له معلوماتو، مهارتونو او ذهنیت څخه په بل ځای کې ګټه اخیستلی شي.

نو: زده کړه = پوهیدل + ذهن ته سپارل ( یادول ) + کار اخیستل.

کله چې زده کوونکی درسونه د کتاب له پاڼو څخه نقلوي یا یې تکراروي نو یوازې یو له دې درې ګونو اجزاوو څخه سرته رسوي. ( ذهن ته سپارل ) او دا بشپړه زده کړه نده.

نو د یوه ښوونکی دنده دا ده چې په ټولګي کې داسې درسي فعالیتونه برابر کړي چې ماشومان وکولای شي چې درې واړه عملیې سرته ورسوي: پوهیدل، یادول (حفظول) او عملي کول. له کتاب څخه نقلول او حفظول هم په خپل ځای کې ښه وي او موږ ډیر شیان په دې ډول زده کوو، خو که ماشوم د یوه متن په مفهوم نه پوهیږي نو یادول یې یو بې ارزښته کار دی او که د پوهې یا علم څخه د کار اخیستلو د پاره فرصت نه وي، نو یادول یې هم بې ارزښته دي.

## فعاله زده کړه او رواجي تدریس

لکه څنګه چې په لومړي درس کې مو بحث وکړ، هر ماشوم د زده کړې وړتیا لري؛ خو په مختلفو لارو، په بل عبارت ماشومان د زده کړې د وړتیا وو له مخې توپیرونه سره لري. په تیرو بحثونو کې مو دا هم

وویل چې زده کړه هغه وخت ښه وي چې زده کوونکی ورباندې پوه شي او کار ځینې واخیستلای شي او یوازې حفظول بشپړه زده کړه نه وي.

ددې لپاره چې زده کوونکي دغه ډول زده کړه وکړای شي، یوازې له کتاب څخه لوستل او لیکل بس نه وي بلکې دوی باید فعالیتونه اجرا کړي. د فعالیتونو د اجراکولو یوه ګټه داده چې زده کوونکي نه یوازې فکر کوي، بلکې په فزیکي ډول هم فعال وي. دغه کار له یوې خوا دوی ښې زده کړې ته هڅوي او له بلې خوا پخپله د زده کولو اسانتیا ورته برابریږي. که چیرې ښوونکی نوي معلومات او درس زده کوونکو ته ووایي او یا له زده کوونکو و غواړي چې کتاب ولولي، نو په دې صورت کې به زده کوونکي یوازې غیرمتحرک اوریدونکي یا لوستونکي وي.

داچې زده کوونکي یوازې له ښوونکي څخه نه، بلکې یو بل څخه هم زده کړه کوي، نو په تدریس کې باید د زده کړې لپاره داسې فعالیتونه هم وي چې له یو بل څخه او له یو بل سره د زده کړې لپاره موقع برابره شي.

زده کوونکي د وړتیا وو له مخې توپیر سره لري، نو په تدریس کې داسې فعالیتونه باید وي چې ټولو زده کوونکو ته فرصت ورکړي شي چې برخه په کې واخلي او څه زده کړي.

په مروجه طریقه کې تدریس معمولاً د درسي کتابونو له مخې ترسره کیږي او ښوونکی دکتابونو محتوی او عنوانونه تعقیبوي. کله کله داسې هم وي چې د نوي درس لپاره زده کوونکي تیار نه وي، یعنې مخکې له دې چې نوی لوست پیل شي نورو معلوماتو او پوهې ته اړتیا لري ترڅو په دغه نوي درس پوه شي. ددې لپاره نو ښوونکی باید د زده کوونکو مخکینی پوهه په نظر کې ونیولې وي او بیا نوی درس پلان کړي، یعنې زده کوونکي د نوي درس په ټاکلو کې په نظر کې نیول کیږي.

قدرمنو ښوونکو!

دېورته بحث په رڼا کې تاسې خپل تدریس څه ډول ارزیابې کوي؟ څه توپیرونه باید په خپله طریقه کې راولی؟ آیا د فعالې زده کړې د اصولو په رڼا کې تدریس ممکن درته ښکاري اوکه نه؟

په لاندې جدول کې د فعالې او رواجي زده کړې یوه له بله یوه مقایسه وګورئ.

**رواجي تدريس**

- ښوونکی پوهه زده کوونکو ته ورلیږدوي.
- زده کوونکي ارام ناست او غوږ یې نیولی وي.
- ښوونکی یوه خوا او زده کوونکی بله خواته وي.
- یوازې له ښوونکي څخه زده کړه کیږي.
- زده کوونکي تر ډیره پورې یوازې ذهني فعالیت اجراکوي.
- د ټولګي نظم او د سپلین ډیر مهم وي او زده کوونکي په منظمو صفونو کې ناست وي.
- زده کوونکي مجبور وي چې زده یې کړي.
- درس دکتاب د فهرست سره سم وی.
- ښوونکی معلوماتي پوښتني ډیرې کوي یعنې څه شی؟ څه ؟ څوک؟ او نور
- درس دلایقو زده کوونکو لپاره وي.

**فعاله زده کړه**

- زده کوونکی پخپله زده کړه کوی
- زده کوونکی متحرک وي او فعالیت اجرا کوي.
- ښوونکی د زده کوونکو د ګروپونو ترمنځ ګرځی.
- له یوبل څخه هم زده کړه کوي.
- په فیزیکي او ذهني دواړو شکلونو فعال وي.
- ظاهراً، کیدای شی ټولګی بی نظمه ښکاره شی او زده کوونکی کیدای شی ناست یا ولاړ وي.
- زده کوونکي زده کړي ته هڅول شوي وي
- درس دزده کوونکو له تیاری او اړتیاوو سره برابروي.
- ښوونکی سر خلاصې پوښتنې کوې یعنې ولې؟ څرنګه او نور.
- درس دټولو لپاره وي

قدرمنو ښوونکو! لاندې دیوه درس مثال وړاندې کیږي، تر لوستلو وروسته، د پوښتنو په هکله غور وکړی.

یو ښووونکی د ژبې لوست په لاندې توګه ورکوي:

ترمقدماتی خبرو وروسته:

- له زده کوونکو څخه غواړي چې کتابونه خلاص کړي او نوی درس پیدا کړي.
- ښوونکی مشکل کلمات په تخته لیکي او بیا یې لولې او زده کوونکو ته یې معنی کوي.

- بیا ښوونکی ټول درس دکتاب له مخې لومړی په لوړ آواز او بیا ورو، ورو لولي او هیله کوي چې زده کوونکی یې په پټه خوله ورسره بدرګه کړي، ترڅو لوستل یې زده کړي. بیا یې په څو تنو زده کوونکو هم لولې
- بیا پوښتنه کوي چې څوک یې نشي لوستلای؟ بیا یې ورباندې لولي.
- بیا ښوونکی د درس مفهوم په ډیره ښه لهجه او اسانه ژبه بیانوي، او له یوه زده کوونکي څخه هم غواړي چې وي وایې
- او بیا درس ختموي.

تاسې څه فکرکوي چې په پورته ډول درس دکوم ډول تدریس نمونه کیدای شي؟ د همدې درس د تدریس بله طریقه به څه وي؟

## فعالیت څه شی دی؟

د زده کړې په عملیې کې د زده کوونکو فعاله ونډه اخستل ډېر مهم دي.د زده کړې څرنګوالی تر ډېره حده په دې پورې اړه لري چې څنګه تدریس کیږي. هغه تدریس به ښه زده کړه را منځته کړي چې د زده کوونکو برخه اخستنه په کې وي، د زده کوونکو علاقه او دلچسپي په کې ساتل شوي وي، د زده کوونکو پخپل ځان اعتماد هڅوي او د زده کړې لپاره یې شوق زیات کړي.

**د زده کړې لپاره یو ښه چاپیریال باید لاندې ځانګړتیاوې ولري.**

**1) د زده کړې لپاره صمیمي فضا:**

که په ټولګي کې زده کوونکي ځان ارام وبولې، په نورو ملګرو (زده کوونکو او ښوونکو) اعتماد او باور ولري، د مرستې له غوښتلو ویره ونلري او له نورو سره د مرستې کولو روحیه په کې وي، نو دغه ډول صنفي فضا به د اغیزمنې زده کړې لپاره ډېره ګټوره وي.

**2) زده کوونکي له ښوونکي ویره ونلري:**

د ښوونکي او زده کوونکو تر منځ اړیکې په زده کړه باندې لویه اغیزه لري. ښوونکي باید له ټولو زده کوونکو سره د هر راز کورنیو سوابقو او فردي ځانګړتیاوو سره، ښې اړیکې ولري. د ښو اړیکو په ترځ کې په زده کوونکو کې د اعتماد او متقابل احترام روحیه رامنځ ته کیږي. زده کوونکي په ځان باور او ددې وړتیا پیداکوي چې له چلنجونو(سختیو) سره مقاله وکړي. زده کوونکي د ښې زده کړې لپاره داسې محیط ته اړوي چې دوی د غلطۍ کولو ویره ونلري، دوی په دې پوه وي چې د دوی تیروتنې زغمل کیږي او غلطي کول بد کار نه بلل کیږي، بلکې د زده کولو لپاره د غلطۍ کول حتمي وي. د غلطي کولو خطر منل او د تجربه کولو په وسیله زده کول، د زده کړې ډیرې اغیزمنې لارې دي. مثلاُ که له زده کوونکو څخه وغواړو چې د افغانستان یوه سمه نقشه رسم کړي او یوازې سمه نقشه بریالتوب وګڼل شي. په دې صورت کې ښایې ډیری زده کوونکي کاملاً نقشه رسم نه شي کړای او د بریالیتوب هیله به هم ونلري. خو که دغه سوال داسې وشي چې که هر چا ښه نقشه وکښله نو هغه به د ټولګي په دیوال وځړول شي, په دې صورت کې به زده کوونکي د نقشې زده کولو ته هڅول شوي وي او هر یو به کوښښ کوي چې ښه نقشه وباسي.

3) د فعالې زده کړې لپاره مناسب چاپیریال:

ماشومان هغه وخت ښه زده کړه کوي چې په دوامداره توګه په شیانو باندې عملي کار وکړي, له نورو سره خبرې, بحث او ګډ فعالیت وکوي او له نویو مفکورو سره مخامخ شي او تجربه یې کړی. برعکس، کله چې دوی یوازې غیر فعال اوریدونکي وي او یا فعالیت داسې وي چې زده کوونکي فقط غوږ نیوونکي او اخیستونکي وي، ښه زده کړه به و نه شي کړای.

**4) د زده کوونکو ځانګړتیاوې او وړتیاوې په نظر کې نیول:**

زده کوونکي که د یوه عمر هم وي، یو له بل سره له مختلفو اړخونو توپیر لري. د زده کولو وړتیاوې( استعدادونه)، د زده کولو طریقې، عکس العملونه او نور په ماشومانو کې یو ډول نه وي. ښوونکی ته په کار ده چې دوی د خپلو زده کوونکو اړتیاوې او استعدادونه وپیژني او په نظر کې یې ونیسي. دا هم ډیره مهمه ده، چې

ښوونکي د زده کوونکو پخوانۍ تجربې, علایق, ژبه, پوهه، مهارتونه او دا چې دوی په څه شي ښه هڅول کیږي، په نظر کې ونیسی.

که ښوونکي یوازې په یوه طریقه درس ورکړي، نو د زده کوونکو په لوی ګروپ کې به ډیری دغه ډول اړتیاوې له پامه غورځیدلي وي او ډېر زده کوونکي به سمه زده کړه ونه کړي.

ستاسې په فکر به دغه ډول ستونزې څومره مهمې وي؟ آیا ستاسې ټول زده کوونکي ستاسې په مضمون کې یو شان پوهیږي او که څوک ډېر او نور لږ پوهیږي؟ څه فکر کوي چې ولې دغسې ده؟

کوم ډول فعالیتونه ښه زده کړه رامنځته کوي؟

ټول په دې باور دي چې ماشومان هغه وخت ښه زده کړه کوي چې دوی د زده کړې لپاره هڅول شوي وي یعنې دوی غواړي چې یو شی زده کړي, د حل یا ځواب د پیداکولو لپاره د مختلفو لارو د لټولو آزادي ولري, دوی ته پوښتنه او موخه واضح وي, دوی ته د ځواب پیدا کولو موقع ورکړل شوي وي او نور.

ستاسې په فکر په ټولګیو کې ددغه ډول فعالیتونو برابروول څنګه پیدا شي؟

پوهیږو چې ماشومان لوبې ډېرې خوښوي, ولې؟ آیا په لوبو کې څه زده کوي او که نه؟ کوم مثال وړاندې کولای شي چې ماشومان په لوبو کې بهتره زده کړه وکړي او حتی داسې شی زده کوي چې د مکتب د کتابو څخه یې هم نه شي زده کولای؟

ماشومان چې کله لوبې کوي, نو د خوښۍ او علاقې برسیره دوی لوبه پخپله تنظیموي او هم دوی لوبو ته تر ډېره دوام ورکول غواړي یعنې بل څوک یې باید ودروي, او هم سیالي په کې وي.

که چېرې په ټولګي کې درسي فعالیتونو هم د لوبو په شان ترتیب شي نو زده کوونکي به ښه زده کړه وکړي. ددې لپاره په کار ده چې د خپل درس په هکله فکر وکړو او داسې فعالیت پیدا کړو چې د کتاب د درس موضوع په داسې بڼه وړاندې شي چې زده کوونکو ته د ساعت تیري په شان وي. البته دا مو په یاد وي چې ټولو زده کوونکو ته باید موقع برابره وي چې برخه په کې واخلي او هغو زده کوونکو ته چې زیاتې مرستې ته اړتیا لري ډېر پام واړوو او پخپله ښوونکی او یا نور زده کوونکي مرسته ورسره وکړي.

**د ښوونکي لپاره وړاندیزونه او د بحث ټکي:**

1) که د څلورم ټولګي د حساب په مضمون کې د مستطیل د مساحت درس ورکوی نو د زده کړې کوم ډول فعالیتونه به په ټولګي کې د اساسي محتویاتو په نظر کې نیولو سره د زده کړې ښه موقع برابره کړي؟

- یوازې د کتاب له مخې لوستل, لیکل او یا دکتاب سوالونه حلول؟ که
- د ښوونکي لخوا تشریحات ورکول, او زده کوونکو لخوا اوریدل او غوږ نیول؟ که
- ښوونکي تر لنډ معلومات ورکولو وروسته له زده کوونکو څخه وغواړي چې په ټولګي کې چې هر شی مستطیل بولې, د هغه مساحت اندازه کړي. کیدای شي دا فعالیت په انفرادي توګه, وړو ګروپونو او یا دوه نفري ګروپونو ته ورکړل شي. هر څوک دې کوښښ وکړي چې ډېر مثالونه پیدا کړي. ددې کار لپاره دې ښوونکی وخت وټاکي او په پاي کې دې زده کوونکي خپل خپل راپورونه وړاندې کړي.

2) په خپلو ټولګیو کې د زده کړې په فعالیتونو غور وکړي, وګوري چې کوم یې موثر دي. د پورته وړاندې شویو فعالیتونو په شان نورې نمونې هم جوړې کړي او عملاً یې تطبیق کړي.

3) ددغه ډول درسي فعالیتونو لپاره کومې ستونزې وینی؟ څنګه دا ستونزې حلولای شی؟

## په فعاله زده کړه کې د ښوونکي او زده کوونکي ونډه (نقش)

ښه تدریس هغه وي چې په پایله کې یې ټول زده کوونکي زده کړه وکړي او خپلو مختلفو مهارتو ته وده ورکړي. د دغه ډول تدریس لپاره یو ښوونکی باید چې لاندې ټکي په پام کې ولري:

### 1) مخکې له دې چې درس پیل شي:

ښوونکی باید د لاندې پوښتنو په هکله تیاري نیسي:

دڅه شي درس ورکوم؟، ددې موضوع په هکله د زده کوونکو مخکېنی تجربه او معلومات څومره دي؟ څنګه درس ورکړم چې زده کوونکی دغه نوي موضوع زده کړای شي؟ ، کوم فعالیتونه به زده کوونکي اجراکوي او څه شیانو ته اړتیا لرم؟ او نور.

په دغه مرحله کې ښوونکی د پلانوونکي په حیث دنده لري.

### 2) د درس په جریان کې:

ښوونکی په ټولګي کې یوه تن یا محدودو زده کوونکو ته نه، بلکې ګڼ شمیر ماشومانو ته خطاب کوي او د ټولګي وخت هم محدود وي. نو ښوونکی د پلان شویو فعالیتونو لپاره د زده کوونکو، درسي موادو او وخت تنظیمولو او اداره کولو ته اړتیا لري. په دې حالت کې ښوونکی ته د ټولګي د اداره کولو دنده هم ور په غاړه وي.

د درس په پیل او نورو برخو ې کله کله ښوونکی د موضوع په اړه یا پخپله معلومات ورکوي، یا یې له کتاب څخه د لوستلو غوښتنه کوي، یعنې زده کوونکو ته نوي معلومات وړاندې کوي.

د درسي فعالیت په پیل کې ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دوی څه کار وکړي؟ او چیرې یې و کړي؟ او آیا ټول یو ځای، وړو ګروپونو او یا انفرادي توګه کار وکړي؟ او څنګه یې وکړي د څومره وخت لپاره او داسې نور. ښوونکی پوهیږي چې یوازې شفاهي لارښوونه به د فعالیت د تر سره کولو لپاره بس نه وي. نو زده کوونکو ته فعالیت ورپیژني یعنې د فعالیت پیل او د اجرا کولو طریقه ورته ښیي.

کله چې زده کوونکی فعالیت اجراکوي نو ښوونکی یې څارنه کوي. که کوم زده کوونکی مرستې ته اړتیا پیدا کړي، ښوونکی مرسته ورسره کوي. په عین حال کې داهم ګوري چې آیا ټول زده کوونکي برخه پکې اخلي که نه او ولې؟ او هڅه کوي چې ټولوته موقع ورکړل شي او له کمزورو زده کوونکو سره خاصه مرسته وشي. په دې صورت کې ښوونکی د نظارت کوونکي په توګه دنده ترسره کوي.

ښوونکی باید په دې پوه شي چې زده کوونکو یې څه شي زده کړل اوکه نه؟ څه ډول نور فعالیتونه اجرا شي چې زده کړه ښه تحکیم شي؟ که ځینې زده کوونکی نه وي پوهیدلی، له هغوی سره څنګه مرسته وشي؟ کله کله ددې اړتیا هم پیداکیږي چې فعالیت بدل شي یا پریښودل شي او په ځای یې بل فعالیت اجراء شي. ځکه چې زده کوونکی یې نشي اجراکولای، یا نه ورباندې پوهیږي.

په دې توګه ویلای شو چې ښوونکی په ټولګي کې د معلوماتو وړاندې کولو، لارښوونې، څارنې، مرستې کولو او ارزیابې کولو ټولې دندې په غاړه لري.

قدرمنو ښوونکو! تاسې په ټولګیوکې د خپلې ونډې په هکله غور وکړی او له پورته بحث سره یې پرتله کړی.آیا په پورته توګه د ښوونکي رول اسانه بولی او که ستونزمن؟ ولې؟

ویلای شو چې کله چې یو ښوونکی د درس پلان جوړوي، نو د درس د پلان لویه او مرکزی برخه د نویو معلوماتو د زده کړې فعالیتونه وي.

د زده کړې په یو فعالیت کې دښوونکی او زده کوونکو ونډه (نقش) په لاندې ډول خلاصه کولای شو.

| ګڼه | د ښوونکي ونډه | د زده کوونکي ونډه |
|---|---|---|
| ۱ | فعالیت معرفي کول | زده کوونکي ځان پوهوي |
| ۲ | د اړتیا له مخې یې، تکرار وي | فعالیت شروع کوي |
| ۳ | نظارت کوي. | فعالیت مخته بیایې له یو بل سره مرسته کوي |
| ۴ | چیرې چې اړتیا ووینې، مرسته کوي. | فعالیت بشپړوي او ښه کوي یې |
| ۵ | له زده کوونکو څخه ځوابونه غواړي | د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| ۶ | غوښتنه کوي چې بیا غور او فکر په کې وکړي | عملي کوي یې |
| ۷ | خلاصه او ازروي یې | له مخکینی پوهې سره اړیکه ورکوي او خلاصه کوي یې |

وړاندېزونه:

- تاسو د ښوونکو دغه ډول ونډه اخستنه د خپلو تجربو سره پرتله کړی؟
- څه توپیرونه لري؟
- څه اسانتیا وې لري؟
- څه ستونزې لري؟
- ایا د ښوونکي دغه ډول رول ستاسو په ټولګي کې عملي کیدای شي؟
- په دې برخه کې کومې خنډونه شتون لري؟ او دغه خنډونه څه ډول له منځه وړلای شي؟

د پورتنیو یادوونو سره سم یو درس تیار کړی:

مثلاُ: یو ښوونکی د ښوونځي بل ښوونکی د خپل ځان مرستندوی ټاکي ترڅو د هغه درسونه وګوري، او د هغه په مهمو او ارزښناکو نکتو بحث سره وکړي.

## یو فعالیت څرنګه جوړیږي؟

- هغه مناسب فعالیتونه، چې په نظر کې دي، و ټاکل شي:

- ددی په هکله چې فعالیتونه په دوه نفري ګروپو او یا له هغه څخه د زیاتو نفرو په وسیله سرته ورسیږي، تاسو تصمیم ونیسی. که دګډونوالو شمیر زیات وي او ټولګی کوچنی وي، د ګروپو تنظیمول مشکل وي، په دې وخت کې د زده کونکو ګروپ بندي په دوه نفرې او درې نفري ګروپونوکې ښه نتیجه ورکوي او ګروپونه د ټولګي دلویوالي په تناسب او د زده کونکو د شمیر په تناسب جوړ کړای شي.

- هغه وخت چې ګروپي فعالیت په کې ښه اجرا کیږي: لنډې مباحثې - ددې لپاره چې پر کوچنیو ګروپونو لنډ ځواب برابر شی، مثلاَ د دوه نفرو په وسیله ښه سرته رسیږي. خو که چېرې د جلسې وخت لنډ وي، نو د ټولو دوه نفري ګروپو لپاره به د ځواب ورکولو زمینه برابره نه شي. خو که چیرې د ژور بحث کولو فعالیت وي، که د پلان جوړول او یا د عملي فعالیت جوړول په کې شامل وي، نو لوی ګروپونه یعنې د دریو نفرو څخه زیات ګروپونه دې جوړ شي.

- فعالیت کیدای شي چې د پوښتنو او ځوابونو په توګه سرته ورسیږی. پوښتنې زده کوونکي فکر کولو ته هڅوي او د څرنګه؟ او ولې؟ په کلمو چې له ځانه سره یې لري، مثالونه وغو ښتل شي.

- په داسې حالت کې دې د ټولګي په مخ کې د یوه فعالیت ښودل په نظر کې ونیول شي چې د فعالیت اجرا کول یې د ټولو ګډونوالو له خوا ممکن وي.

- یو بل ډول فعالیت ساحی ته دزده کوونکو وړل دي، ترڅو هغه څه چې تدریس شوي دي، لمس یې کړي او ویې ګوري. دغه ډول فعالیت د زده کړې د عملي کولو لپاره ګټور تمامیږي.

- د ډرامې په شکل رول لوبول او تمثیل کول یو جسمي فعالیت دی چې زده کړه د اوریدلو او لیدلو د وړ ګرځیدو په ذریعه په زړه پورې کوي.

- داسې زیار دې وایستل شي چې ډرامې او تمثیل دې د زده کونکو فکر په کار واچوي.

- هغه وخت چې فعالیت مو وټاکه، له ځانه و پوښتئ چې :

- څرنګه کولای شو چې ټولو ګډونوالو ته په کې برخه ورکړو؟

- ایا په فعالیت کې ښه والی راوستلی شم؟

- کومه پوهه به له دې فعالیت څخه زده شی؟

- کوم مهارت به له دې فعالیت څخه په لاس راشي؟

- کومه مثبته روحیه به په دې فعالیت کې د ګډون په اثر غښتلي شي؟

- د خپلو همکارانو سره فعالیت مشق او تمرین کړی یا خپلې سترګی وتړی او د فعالیت پیل، جریان او اخیر په خیال ( تصور) کې مجسم کړی. د تمرین په جریان کې د فعالیت وخت و ازمایی ترڅو چې ولېدل شي چې مصرف شوی وخت د پلان سره سم دی او که نه؟ نو اړین تغیرات په کې راوړی.

## د زده کړې فعالیت څنګه اجرا شي؟

### د فعالیت د اجراء کولو لپاره د ټولګي تنظیمول

په ټولګیو کې زده کوونکي په ځانګړي ډول زده کړه کوي, او د زده کړې د وړتیاوو له مخې هم یو له بله سره توپیر لري. د دې لپاره چې ټول زده کوونکي زده کړه وکړي لازمه ده چې په تدرس کې د فعالیت د پلانولو په وخت دغه ټکي په پام کې ونیول شي.

- داسې فعالیت چې د ټول ټولګي لپاره وي.
- داسې فعالیت چې په وړو ګروپونو کې اجراء شي.
- داسې فعالیت چې په انفرادي توګه هر زده کوونکی ځانته کار وکړي.
- داسې فعالیت چې زده کوونکي په دوه کسیزه یا لوی ګروپ کې کار وکړي.
- فعالیتونه د کیفیت او ډول له مخې هم کیدای شي چې شفاهې، تحریري او یا په موادو اجرا شي همدا راز د سختوالي او اسانوالي له مخې هم باید متنوع وي. هره ورځ باید متنوع فعالیتونه اجرا شي.

.

## د ګډوونکوونکو د شمیر له مخې د فعالیت ډولونه

### الف:د ټول ټولګي فعالیت

داسې فعالیت چې د ټول ټولګي لپاره وي, دوه ګټې لري. یو دا چې معلومات په کم وخت کې د زده کوونکو لوي ګروپ ته ورکول کیږي او ټول زده کوونکي په عین وخت کې عین فعالیت اجراء کوي. بله ګټه یې داده چې زده کوونکي بې له ویرې له یو بل سره خپلې تجربې او مفکورې شریکوي. داسې فعالیتونه چې د ټول ټولګي لپاره وي باید د ښوونکي له خوا معرفي شي. ددې دول فعالیت مثالونه دادي: د زده کوونکیو له جملې څخه د یوه لخوا کیسه یا ټوکه ویل او خپل فکر او یا خپله تجربه بیانول او یا نورو په شکل وي.

په ټولګیو کې زده کوونکي د سویې او توان له مخې ممکن توپیر سره ولري او کیدای شي یوه موضوع د تکړه زده کوونکو لپاره ستړې کوونکي او تکراري وي، اما برعکس د کمزورو زده کوونکو لپاره مشکله او ګرانه وي. د دغه ډول ستونزو د حل لپاره د زده کوونکو په ګروپونو کې فعالیتونه اجرا کول ډېره ښه طریقه ده. او تاسی کولای شی ګروپونه داسې جوړ کړی چې په هر ګروپ کې تکړه او ضعیف زده کوونکي وي او تکړه زده کوونکي د خپلو کمزورو ټولګیوالو سره مرسته وکړي.

### ب:ګروپي کار

کیدای شي ټولګي په څو ګروپونو وویشل شي او هر ګروپ په عین موضوع یا مختلفو موضوعاتو کار وکړي دلته ډېره مهمه داده چې ګروپونو ته ورکړل شوي دندې باید داسې وي چې د ګروپ هر غړی ځانته او له ټولو سره په ګډه د دندې په اړه یو څه فکر وکړي. زده کوونکي پخپله او له نورو غړو سره کار کوي او ښوونکی لارښوونې ورته کوي او کله کله تعقیبې او دوامداره مرستې ورسره کوي. په وړو ګروپونو کې یو له بل سره د همکارۍ, ګډې هسې, خبرو کولو, بحث کولو او د نظر د تبادلې لپاره باید موقع وي او د ګروپ د هر غړي لپاره د برخه اخستلو فرصت موجود وي.

ښوونکي به دګروپونو په منځ کې ګرځي او زده کوونکو ته به د ضرورت په وخت لارښوونې کوي. که ګروپونه د وړتیاوو له مخې جوړ شوي وي, نو ښوونکي به د هغه ګروپ سره ډېر وخت تیروي چې زیاتې مرستې ته اړتیا لري.

واړه ګروپونه کیدای شي چې د وړتیاوو له مخې د زده کوونکو پخپله خوښه او یا مختلط جوړ شي. د وړتیاوو له مخې په ګروپونو کې زده کوونکي د دوی د زده کړې د سویې له مخې یو ځای شوي وي او ورسپارل شوي دندې هم باید د دوی له سویې سره برابري وي, یو مهم ټکي دا دی چې ښوونکی دې له ضعیفو ګروپونو څخه ټیټه تقاضا نکوي، بلکې باید د ګروپ د غړو ځانګړو وړتیاوو او علایقو ته ځانګړې پاملرنه وکړي. ښه داده چې دګروپونو ترکیب وقتاً فوقتاً بدل شي.

**ج:انفرادي کار**

کله نا کله زده کوونکي په انفرادي توګه یوه دنده اجرا کوي. دنده کیدای شي د زده کوونکي او ښوونکي له خوا وټاکل شي. موضوع به د درس په اړه وي او یا د زده کوونکي د اړتیاوو له مخې. کیدای شي زده کوونکي په خپل سرعت او د توانایې په اندازه کار وکړي.

**د: دوه کسیزه کار**

دوه کسیزه کار هغه وخت ډېر اغیزمن وي, کله چې زده کوونکي له یو بل سره د مرستې او ګډ کار کولو له لارې و غواړي یوه مسئله حل کړي، بحث پرې وکړي، په ګډه لیکنه وکړي، د یو بل سره درس ووایي او نور. زموږ د هېواد په ټولګیو کې دوه کسیز کار ډېر عملي ښکاري، ځکه دوه کسیز او څنګ په څنګ کار د ډېرو زده کوونکو په صورت کې هم څنګ په څنګ کار ممکن دی.

## فعالیت څنګه وړاندې شي:

د څلورم ټولګي د ژبې په درس کې د زده کړې یو فعالیت، چې ښوونکي د نوم او صفت په باب پلان کړی وي، په لاندې توګه وړاندې کیدای شي.

- لومړی ښوونکی فعالیت معرفي کوي، یعنې زده کوونکو ته وایي چې څوک، څه او څنګه وکړي. مثلاً: ټول حلقه جوړه کړي, په لومړي سر کې ښوونکی فعالیت شروع کوي. مثلاً: زه وایم: تخته. زده کوونکي وایې: توره تخته. یو تن په ټولګي کې د موجودو شیانو نوم اخلي, پاتې به کوښښ کوي چې د هغه شي مناسب صفت ووایی.
- بیا زده کوونکي دغه فعالیت ته دوام ورکوي. ښوونکي څارنه, لارښوونه او کله-کله مرسته کوي. مثلاً: تخته: توره تخته، کړکی: ژېړ کړکی او داسې نور.

- په پاي کې ښوونکي له زده کوونکو سره په ګډه فعالیت خلاصه کوي, یعنې د نوم او صفت په باب خبرې کوي.

### د ښوونکي لپاره وړاندیزونه او د بحث ټکي:

ښاغلو ښوونکو:

- تاسې پخپل تدریس کې کوم ډول فعالیتونه کوی؟ آیا زده کوونکي پخپله خوښه برخه په کې اخلي؟ داسې فعالیت مو په یاد دی چې زده کوونکو تر ډېره دوام ورکول غوښتی وي او تاسې اړ شوي یاست چې بس یې کړي؟ هغه کوم فعالیت وو؟ په هغه فعالیت کې زده کوونکو څه زده کړل؟ د تاسې په فکره زده کوونکي ولې په هغه فعالیت کې ډېر خوښ وو؟ نور دغه ډول مثالونه لرئ؟
- د دوه کسیز کار څخه مو کله کار اخستي ؟ څه فکر کوي چې د تاسې د ټولګي لپاره به عملي وي او که نه؟
- د تاسې په ټولګیو کې به د دغه ډول فعالیتونو د تطبیق امکان وي؟ څه موانع وینی؟
- د ښې زده کړې لپاره باید په هره اونۍ کې لږ تر لږه یو ځل باید د لویو ګروپونو دوه کسیزو ګروپو او یا انفرادي فعالیتونه اجرا شي.

### د زده کړې لپاره د بې ویرې چاپیریال منځ ته راوړل

دې کیسې ته وګوری او فکر وکړی:

د ماشومانو یوې ډلې په غره کې لوبې کولی، هغوی یو غار ولېد. غوښتل یې ددې غار په باره کې پوه شي او پیدا کړي چې د هغې په ننه کې به څه شی وي، لیکن غار تیاره دی او ماشومان له تیارې څخه ویریږي. ستاسې په نظر آیا ماشومان به دغه غار کشف کړي او که نه؟

دځواب ورکولو لپاره دوه حالتونه په نظر کې ولرئ. لومړی هغه عوامل چې ماشومان دې ته هڅوي چې باید غار کشف کړي او بیا هغه عوامل چې غار ته یې له ننوتلو څخه منع کوي. لومړی هغه عوامل چې د ماشومانو غار ته د ننووتو سبب کیږي.

- ځیرکتیا.
- حادیثه او پېښه.
- غوښتنې او خواهش چې کولای شي نور ماشومان و هڅوي.
- د یوه نوي شي د کشف کولو د احساس شدت، او د یوه نوي کار سرته رسول.
- هغه څه ته د رسیدلو لپاره یو عاجل محرک چې نورو ماشومانو تر اوسه هغه کار سرته نه وي رسولی.

هغه عوامل چې ماشومان غار ته له داخیلیدو څخه منع کوي:

- له تیارې څخه ویره
- له ورک کیدو څخه ویره
- له چاودېدونکو موادو او ماینونو څخه ویره
- له یوه نا آشنا ځای څخه ویره.
- د والدینو له غوصې او قهر څخه ویره.

وروسته له ټولو خبرو، آیا ماشومان به غار ته داخل شي؟

ځینې ماشومان به تر یوه ځایه غارته ننوزي خو یو شمیر نور نه غواړي غارته ننوزي. ولې؟ ځکه ویره په خپل ذات کې یو ځواکمن خنډ دی چې د ماشومانو د پلټنې په انګیزه باندې اثر اچوي.
په نتیجه کې کولای شو ووایو چې د ټولګي کوم ډول چاپیریال د انکشاف او زده کړې باعث ګرځې او برعکس کوم ډول چاپیریال د ماشومانو زده کړې ته تاوان رسوي.

زده کړه د انسان یوه پروسه او انګیزه ده چې د انسان په دننه کې موجوده وي چې د کشف کولو، اختراع کولو د نوي او هیجاني کار د سرته رسولو له انګیزې څخه را پیدا کیږي. ماشومان د خپل ځان په شاوخوا

کې راټولیږي ترڅو خپل چاپیریال وپیژني. لوي ماشومان د خپل ځای په شا و خوا کې ګرځي او پلټنې کوي. له دې امله د انسان د ننه انګیزه د زده کړې لپاره او همدا اصل دی چې ماشومان ښوونځي ته راځي او غواړي څه زده کړي.

خو له بلې خوا وېره هم د انسان په دننه کې یوه انګیزه ده چې حتی د کنجکاوۍ له حس څخه هم قوي ده. وېره د ژوندي پاتې کیدو لپاره ضروري ده، ځکه که موږ له هغو شیانو څخه چې خطرناك وي وېره و نلرو په دې صورت کې به ډېر کم شمېر له موږ څخه ژوندي پاتې شي. له دې امله وېره دیوه داخلي محرك په څېر د پلټنې د محرك په نسبت د انسان په عمل کې زیاته اغیزه لري. موږ د پلټنې حس ته اړتیا لرو، ترڅو په هغې متکي شو او زده کړه وکړو، که د غار کیسه په ژوره توګه وګورو وینو چې ویرې واقعاً یو ګټور کار سرته رسولی دی، ځکه ددې امکان وچې ماشومان غار ته د ننوتلو په صورت کې له خطر سره مخ شوي وای. خو د ښوونځي د ټولګي چاپیریال د ویرې ځای نه دی، نو ځکه باید چاپیریال له وېرې څخه خلاص وي ترڅو ددې باعث وګرځي چې د پلټنې حس نور هم وده وکړي. ښوونکي باید د ماشومانو لپاره د تهدید وسیله نه وي، بلکې برعکس باید د شاګردانو لپاره د ډېرو نږدې او کومکي سرچینو په څیر تلقي شي. خو په ځینو ټولګیو کې د هغوی ښوونکي د وېرې او تهدید د سرچینو په څیر شمیري نه داچې هغوی د کومکي سرچینو په څیره ګوري، نو ځکه هغوی وېره لري. څرنګه چې وېره لري نو ځکه یې د پلټنې حس ته زیان رسیږي او په نتیجه کې اغیزمنې زده کړې نه شي کولای.

د ښوونځي څخه د ماشومانو د ویرې ځینې علتونه:

- د ښوونکي له غوصه کیدلو څخه وېره.
- د ښوونکي له جزا څخه وېره.
- له دې څخه وېره چې لوي ماشومان هغوی ته ځوروي.
- له دې څخه وېره چې کیدای کم عقل معرفي شي.
- له دې څخه وېره چې مبادا د ښوونکي پوښتنو ته صحیح ځوابونه ور نه کړي.

- له دې څخه وېره چې ښوونکي دده له غلطيو څخه په غوصه نه شي.
- له دې څخه وېره چې ښايې پوه نه شي د کومو دندو لپاره به وګمارل شي.

**د ټولنيزو سزاګانو څخه ويره:**

د ډېر شمير ماشومانو لپاره ښوونځي د زده کړې ځای نه بلکې د ويرې ځای دی چې د ماشومانو پلټنې، کشفياتو، د حوادثو او پيښو درک او نور برياليتوبونو ته لوی زيان رسوي. په داسې حال کې چې دغه داخلي احساس لکه کنجکاوي، کشف کول د حادثې او برياليتوب بايد د ښوونځي له لارې وده و مومي ترڅو په دې ذريعه زده کړه وشي.

وېره او احترام يو شانته شيان نه دي. ماشومان خپلو ښوونکو ته ځکه احترام کوي چې هغوی ورته ګران دي. هغوی له خپلو ښوونکو څخه نوې تجربې، نوي معلومات، نوې نظر يې، د زده کړې فرصتونه او زده کړي دي دغه ډول ښوونکي له هغوی سره مرسته کوي چې زده کړه وکړېږي. که لږ څه په غور سره فکر وکړو و يلای شو چې دغه احترام له ښوونکو څخه د ويرې معنی نلري. کله چې يو ماشوم خپل ښوونکي ته احترام کوي، غواړي چې د هغه په شان و اوسي. خو بر عکس هيڅ يو ماشوم نه غواړي دهغه سړي په شان شي له کوم څخه چې دی وېره لري. د ويرې څخه خلاصه فضا ايجادول په ټولګي کې لومړی او ډېر مهم ګام دی او نور ګامونه شته. يعنې له ويرې څخه د خلاصې فضا ايجادول چې د زده کړې لپاره ضروري ده، له دې سره-سره نورشيان هم د زده کړې لپاره اهميت لري چې بايد پاملرنه ورته وشي ترڅو ماشومان په اغيزمنه توګه زده کړه وکړي.

- ماشومان تشويق او مکافاتو ته اړتيا لري.
  - ماشومان د کشفياتو لپاره فرصتونوته اړه دي.
  - ماشومان د موفقيت احساس ته ضرورت لري.
  - ماشومان د مسؤولېت احساس او ګټورتوب ته اړتيا لري.
  - د مصئونيت احساس هم د دوی لپاره ضروري دی.
  - ماشومان عدالت او انصاف ته اړتيا لري.
  - ماشومان غواړي چې له توپيرونو څخه خلاص وي.

- ماشومان غواړي چې پوه شي چې لويان موجود دي، د اړتياپه وخت کې له دوی سره مرسته کوي او د دوی غوښتنې تر کتنې لاندې نيسي.
- ماشومان غواړي پوښتنې وکړي او له دې لارې زده کړه وکړي.
- ماشومان ضرورت لري چې خپل نظريات په ازاد ډول بيان کړي.
- ماشومان ضرورت لري چې تصور او تفکر وکړي.
- ماشومان دې ته اړتيا لري چې تشويق شي ترڅو ستونزې حل کړي.
- ماشومان دې ته اړتيا لري چې دوی هم د خلکو په شان و منل شي.
- ماشومان دې ته اړ دي چې ټولګی يې د بهترينو ځايونو له ډلې څخه ومنل شي.

ځينې طريقې چې ښوونکي کولای شي. پورتنيو اړتياوو ته ځواب ووايي:

**۱. هڅول، مکافات او ستاينه:**

هڅول او ستاينه دومره ساده نه ده لکه يو ښوونکي چې خپل شاګرد ته ووايی (( شاباش))، (( آفرين)) بلکې ماشومان کله چې هغه کوي سخت کارونه اجرا کړي، دې ته زياته اړتيا لري. د ماشومانو هڅول حکم کوي چې ښوونکی خپل يو څه وخت په دې کې مصرف کړي چې د شاګردانو کار وګوري. خو په اساسی ډول ماشوم ته غوږ نيول ډېر مهم دي ددې په ځای چې هغه ته شاباش ووايو. ځينې کله د اشارو او يا موسکا په ذريعه د ماشومانو د کار څخه مننه کوي يا د هغوی منل هم کيدای شي چې د ماشومانو د اغيزمنې زده کړې لپاره عمده عوامل و بلل شي.

**۲. د کشف او پيدا کولو لپاره فرصتونه**

ښوونکي د شاګردانو لپاره د پوښتنو د ورکولو په ذريعه د فکر کولو، د ستونزو د حل کولو، د معلوماتو د پيدا کولو د طريقې، او د هېواد او د نورو هېوادونو د عمده تاريخي او جغرافيايې عواملو د پيدا کولو فرصتونه ورکوي.

**۳. د برياليتوب روحيه**

د بریالیتوب د روحیې لرل له ((شاباش)) ویلو څخه ډېره قوي ده چې ښوونکی یې شاګرد ته وایي. ځکه دغه روحیه له ماشومانو سره د ژوند تر پایه پورې پاتې وي. نو ځکه ددې لپاره چې دغه روحیه په ماشومانو کې وده وکړي باید هغوی دندې ګام په ګام اجرا کړي. ماشومانو ته باید وخت ورکړای شي ترڅو هغوی د بریالیتوب څخه وروسته ګام په ګام پرمخ ولاړ شي.

هر شخص د خپل میل یا خوښې او چټکتیا په مطابق زده کړه کوي. نو ځکه باید ښوونکی شاګردانو ته دندې په داسې ډول وسپاري چې د زده کړې په بل وروستي ګام کې د هغوی د ندو په واسطه ماشوم فطري استعداد په هر مضمون کې وده کړي. ددې مطلب دادی چې ماشومانو ته په بېلابېلو وختونو کې مختلفې دندې ورکړای شي ځینې ماشومان د ځینو مضمونونو په زده کولو کې تر نورو ډېر ښه وي او دا خبره په مختلفو ټولګیو کې بدلون مومي،خو هر ماشوم دی ته اړتیا لري چې د بریالیتوب احساس وکړي. البته دغه د زده کړې لپاره بنیادي هڅونې دي.

**٤. د مسؤولیت او ګټورتوب احساس**

ماشومان غواړي مهم تلقي شي او مسؤولیت ولري. په کلیو کې ډېر لوی ماشومان د څارویو په روزنه او ساتنه کې لګیا دي. په لویو کورنیو کې یو شمیر لوی ماشومان ددې مسؤلیت لري چې په وړو ماشومانو نظر وساتي. په ماشومانو کې په خپل ځان د باور درلودلو حس وده کوي. او په دې بر سیره ماشومان غواړي مهم کار سرته ورسوي. خو باید په پام کې ولرو چې ماشومان باید د دوی د عمر مطابق د دندو لپاره و ګمارل شي. په لاندې ډول د دندو یو لست موجود دی چې ښوونکي کولای شي په خپلو ټولګیو کې شاګردان په هغو وګماري.

- یوه ډله شاګردان ددې لپاره وګمارل شي چې د ورځې مواد ترتیب او تنظیم کړي.
- یو ماشوم په دې وګمارل شي چې له هغو ماشومانو سره مرسته وکړي چې یا معیوب وي، یایې د ښوونځي ژبه نه وي زده یا نوی ښوونځي ته داخل شوی وي.
- ځینې ماشومان چې په یوه مضمون کې ښه وي په دې دې و ګمارل شي چې له هغو ماشومانو سره مرسته وکړي چې په همدې مضمون کې کمزوری وي او د دغو کمزور و شاګردانو لپاره د هغه

مضمون وظیفه ورکړای شي. په لنډ ډول ټول شاګردان باید داسې په دندو وګمارل شي چې هغوی احساس وکړي چې مهم او ګټور دي.

- ماشومانو ته دې وظیفه ورکړای شي چې د ښوونځي بڼ ته او به ورکړي او ونې اوبه کړي.
- که د ټولګي په داخل کې ګلان وي ځینې ماشومان دی په دې وګمارل شي چې هغو ته اوبه ورکړي.
- یوه ډله شاګردانو ته دې وظیفه ورکړای شي چې د ټولګي د ټولو دیوالي چارتونو څخه دې ستاتنه وکړي.

**۵. د مصؤونیت احساس**

ترټولو ښه مصؤونیت دادی چې له وسله والو جګړو څخه لري ووسي. دغه راز ترټولو مهم مصؤونیت دا هم دی چې ماشومان وپوهیږي له دوی څخه به څه توقع کیږي. نو ځکه ښوونکي کولای شي داسې چاپیریال ایجاد کړي چې هلته د ښوونځي، ښوونکي او ټولګي مقررات او قوانین روښانه او څرګند شي، ترڅو ماشومان وپوهیږي چې څه وکړي، او د کوم کار له کولو څخه ډه ډه وکړي. مقرراتو په باب باید دلایل هم وویل شي. که یو ماشوم ځینې مقررات مراعات نه کړي په دی صورت کې سرغړونه ماشوم ته شرح شي. د هرې سرغړونې لپاره د جزا ورکولو دلایل هم ورته وویل شي. له هر ماشوم څخه انتقاد کول باید په مشخصه توګه په هغې سرغړونې پورې ارتباط ولري چې ماشوم یې مرتکب شوی دی.

**٦ . په ټولګي کې مناسب چلند او عدالت**

څنګه چې ماشومانو زده کړل چې مقررات څه شی دی، دغه راز دوی باید وپوهیږي چې د سرغړونې په صورت کې کیدای شي چې جزا هم ووینې. ماشوم ته هم وخت ورکړای شي او پخوا له دی چې سرغړونه سرته ورسیږي هغه ته خبر ورکړای شي او په عین وخت کې ماشوم ته اجازه ورکړای شي ترڅو له خپل چلند څخه دفاع وکړي. په ټولګیو کې باید په عملي توګه ښه سلوک او چلند وشي او عدالت عملي شي، ترڅو ماشومان وپوهیږي هغه مثالونه چې د ښوونکي له خوا ورکړای شوي دي ښه، او مناسب دی.

بې له موجبه او غیر مناسبه جزا ورکول د ښوونکي غیر مسلکي چلند ښیي.

**۷. د تبعیض منع کول**

ښوونکي باید هیڅکله د ماشوم له شخصیت، د هغه له کورنۍ، د هغه له کلتور، ژبې، قومیت او مذهب څخه انتقاد ونکړي. دغه راز ښوونکي باید دې ته پام وکړي چې بل ماشوم یا یوه ډله په نورو ماشومانو انتقاد ونه کړي او یا هغو ونه ځوروي.

**8. داوریدلو د مهارت د انکشاف لپاره بنیادي ټکي**

- یو بشپړ آرام مصؤونه چاپیریال ایجاد کړی.
- د پوهیدلو او پوهولو لپاره پوره وخت ورکړی.
- په مستقیمه توګه د ماشوم خواته وګوری.
- مداخله مه کوی.
- احترام او زړه سوی وښیاست.
- انتقاد او قضاوت مه کوی.
- داسې پیل کړی، چې ښه بیا څه وشول، ښه تاسې ددې پیښې څخه څه احساس وکړ.

**9. د پوښتنو کول او له ځوابونو څخه زده کړه کول**

پوښتنې کول داسې طریقه ده چې د هغې په ذریعه نوي معلومات لاس ته راځي او انسانان زده کړه کوي، نو ځکه ماشومان باید وهڅول شي چې په ټولګي کې پوښتنې وکړي. ښوونکي باید له دې څخه وېره ونه کړي چې د ماشومانو ټولو پوښتنو ته ځواب ووايي. داخبره بالکل د منلو وړ ده چې وویل شي: ((پوښتنه ډېره معقوله ده خو زه د هغې ځواب نلرم)) پوښتنې ډیرې زیاتي دي چې هیڅوک نه شي کولای هغوی ټولو ته ځواب ووايي. داسې پوښتنې شته چې فیلسوفانو د هغو توپیرونو په باب چې په هغو کې شته مشاجری کړي دي. داسې پوښتنې هم شته چې د سانیس پوهان اوس هم ورته د ځوابونو په لټه کی دي. که پوښتنې نه وی بشریت نه شوی کولای انکشاف وکړي. نو ځکه تر ممکنه حده پورې ښوونکي باید ماشومان وهڅوي چې پوښتنې وکړي (د زیاتو معلوماتو لپاره د پوښتنې او له هغو څخه ګټې اخیستلو برخې ته په دې کتاب کې مراجعه وکړی).

**10. د بیان او افکار و ازادي**

فعاله زده کړه داسې جوړېږي او طرح کېږي چې شاګردانو ته د افکارو دآزاد بیان زمینه برابروي. ښوونکي د فعالی زده کړې او په هغې مربوطو فعالیتونو په طرح په تیره بیا د انفرادي یا ګروپي دندو په طرح دې واقعیت ته پام وکړي چې ماشومان د نظر د بیان لپاره مناسبه آزادي ولري.

په مختلفو مضمونونوکې ددې نظر د تطبیق لپاره باید ښوونکي لاندني ټکي په پام کې وساتي:

- هغه ستراتیژي تشریح کړي چې هغوی یې د ریاضي د ستونزې د حل لپاره په کار اچوي.
- ستاسې د کار په مطابق ماشومان به تاریخي حادثې په وړاندې د څه شي احساس وکړي؟
- فکر وکړی چې که ماشومان هغو ملکونو ته ولاړ شي چې دوی په جغرافیه کې مطالعه کړي دي، څه احساس به وکړي؟

**11. د ماشومانو هڅول ددې لپاره چې له خپل تصور څخه استفاده وکړي**

د ستونزو د حل کولو لپاره د ښوونځي په دوران کې او یا له هغه څخه بهر تصور کول یوه ښه وسیله ده. بېلابېلې طریقې موجودي دي، چې ښوونکي کولای شي، ماشومان دې ته وهڅوي چې له خپلو تصوراتو او تفکر څخه ګټه واخلي:

- ماشومانو ته ددې فرصت ورکړای شي چې لنډې ډرامې طرح کړي او یا یو نقش اجرا کړي. کیسې باید په یوه میتود متکې وي چې د ښوونځي په یوه مضمون کې یې لوستلي وي.
- پریږدی چې ماشومان له ځینو څخه انځورونه وباسي، او د هغو تصویرونو په باب څه ولیکي. البته دا یوه طریقه ده چې ماشومان له دې څخه منع کوي چې له تختې یا کتاب څخه یوازې نقل و کړي.
- ماشومان دې ته وهڅوی ترڅو له خپلو تصوراتو څخه کیسې ولیکي، ددې په عوض چې هغوی دې ته وهڅول شي چې له کتابونو څخه کیسی رانقل کړي. د ژوند د پروسې په لیکلو کې ددې امکان شته چې املایي یا ګرامري غلطي وشي خو د وخت په تیریدو سره دغه نیمګړتیا رفع کیږي.

د صحیح لیکلو لپاره ښه طریقه ډېره مطالعه کول دی. او هر څومره چې ماشومان د خپلو تصوراتو په باب زیات ولیکي هغومره دوی دې ته هڅول کیږي چې ډېر لوستل وکړي. خو باید په یاد ولرو چې له کتابونو څخه نقل کول نه شي کولای املا او ګرامر تصحیح کړي. په هغه وخت کې چې ماشومان د نورو

کیسې رانقل کوي، غلطي ګانې یې لرې وي. خو باید په یاد ولرو چې که دوی له خپل ځان څخه څه ولیکي، ښایې چې غلطې ګانې موجوده وي.

### 12. د فکر کولو او د ستونزې د حل د لارې د پیدا کولو لپاره د ماشومانو هڅول

ماشومان باید د ستونزې د حل لارې د پیدا کولو لپاره وهڅول شي. ښوونکي باید ماشومان د فردی طرز فکر لپاره و هڅوي او بیا له هغوی وپوښتي چې خپل افکار او نظریان د لیکلو، ډرامې او یا رسم کولو په ذریعه بیان کړي.

### 13. احساس وکړي چې هغوی ته د خلکو په څېر درناوی کیږي

ماشومان تر ځوانانو واړه دي لکن دواړه یو ډول انسانان دي. که وغواړو چې ماشومان باید نورو خلکو ته احترام وکړي لومړی دوی باید خپله د محترم شمیرل کیدو خوند ووینې، ترڅو دوی بیا نورو ته احترام وکړي.

د ماشومانو احترام کول په دې مفهوم نه دی چې هغوی پریږدو هر څه چې یې زړه غواړي ویې کړي. بلکې برعکس ماشومانو ته احترام کول په دې مفهوم دی چې هغوی ته باید غوږ ونیول شي، خطاوې یې په حوصله اصلاح شي او هغوی ته وخت ورکړای شي چې خپل نظریات او افکار په آزاد ډول بیان کړي. ماشومانو ته احترام کول ددې اړتیا پیداکوي چې هغوی ته دندې ورکړای شي (9 فقرې ته مراجعه وشي ) او په هغوی خپل ځانې درناوي ته وده ورکړی شي او هغوی نوروته په احترام کولو مجبور کړو او د هغه په باب درس ورکړو.

### 14. ټولګي د ماشومانو لپاره د یوه ځانګړی ځای په څېر

ټولګي د هغو پرنسیپونو پر بنیاد چې په دې رساله کې یې ذکر وشو، هغو ځایونو ته ویل کیږي چې ماشومان هغو ته د خپل ځان لپاره د ځانګړو ځایونو په سترګه ګوري څکه داسې ځای د هغوی ته د زده کړې اسانتیا او مصئونیت په عملي ډول تیاروي. دا باید داسې ځایونه وي چې ماشومان په هغو ویاړ وکړي. هغوی بنیادي احساس وکړي چې ټولګی په هغوی پورې تعلق لري، او ښوونکي داسې کسان دي چې د هغوی خبرې اورې، له هغوی سره مرسته کوي ترڅو زده کړه وکړي، کشف وکړي او خپل چاپیریال وپیژني.

ټولګي باید داسې ځای وي چې هلته:

1. ماشومان د هوساینې احساس وکړي.
2. ماشومان په هغو مقرراتو وپوهیږي چې وضع شوي دي ځکه چې هغه ګټور دي.
3. ماشومان عملي کارونه، چارتونه او ډرامې طرح کوي او له هغو ګټه پورته کوي.
4. هلته چارتونه او نور کومکي درسي مواد موجود وي.
5. ټولګی پاک او ستره وي او ماشومان د هغوی د پاکی مسؤول وي.
6. هلته کافی تازه هوا او روښنایي موجوده وي.
7. مواد داسې ترتیب شوي وي چې دواړه ښوونکي او ماشومان له هغو څخه ګټه پورته کړي.
8. ماشومان د ټولګي د نظافت او پاکۍ په باره کې یو له بل سره معلومات او تجربې شریکوي.

**ګروپي کار- له یو بل څخه د زده کولو له لارې فعاله زده کړه**

**د دریو ( رقابتي، انفرادي او تعاوني) ټولګیو مقایسه**

**رقابتي ټولګی**

دغه ډول ټولګي تر ټولو ډېر څرګند او ټولو ته اشنا دي، ځیرک شاګردان تل له ځان څخه دا پوښتنه کوي، زما رقیب څوک دی؟ څوک باید په څمکه پرې باسم، چې زه یې وګټم او ........ په دې ټولګي کې زده کوونکي ددې په ځای چې نور ټولګیوال د خپلو دوستانو او طرفدارانو په څیر وګڼي، هغوی ته په داسې سترګه ګوري چې ګوندې د دوی د پرمختګ په لار کې خنډ دی.

دغه ټولګي د بایلونکي ګروپ لپاره یعنې د متوسطو او وروسته پاتي زده کوونکو لپاره ډېره ګرانه ده، ځکه هغوی د خپلو ځانونو لپاره د پرمختګ امکان نه ویني، خپل ځانونه بایلونکي ورته ښکاري او ورځ په ورځ یې په خپل نفس باندې باور کمیږي. دغه ټولګي د ځیرکو شاګردانو یا وړونکي ګروپ لپاره هم ډېر په زړه پورې نه دی ځکه هغوی تل په دې اندیښنه کې وي چې مبادا نور میدان ورڅخه یو نه سي. او له دې نه علاوه دغه ګروپ په نورو زده کوونکو کې ډېر محبوبیت نلري. لیکن رقابتي ټولګي همیشه بد نه دي. ځینې وختونه رقابت د زده کوونکو لپاره خوند او پاریدنه له ځان سره لري. خو کله چې زده کوونکي له یو بل سره په رقابت کې اچوی لاندنیو ټکو ته پاملرنه وکړي:

1. هغه زده کوونکي په رقابت کې سره واچوي چې تقريباً يو شانته توانايي ولري؟

2. د ګټونکو شمير د امکان تر حده پورې لوړ بوزی.

3. د رقابت څخه د خوند اخستلو او د کار په ګړنديتوب کې د بدلون لپاره کار واخلی.

**انفرادي ټولګي**

په دې ټولګي کې هر زده کوونکی په يوازېتوب کې کار کوي او ددې انديښنه نه وي چې بل څوک ددې باعث وګرځي چې بېکاره يې وښيي. هغو په يوازېتوب او په خپل ګړنديتوب سره کار کوي او له نورو زده کوونکو سره ډېر سروکار( تعامل) نلري او زده کوونکي له يو بل څخه د مرستې تمه نلري.

**تعاوني ټولګي**

په دې ډول ټولګي کې زده کوونکي له يوه بل سره تړلي دي. په دې پوهيږي هر وخت چې مرستې ته ضرورت پيدا کړي داسې څوک شته چې ورسره مرسته وکړي او دغه څوک کيدای شي د دوی ټولګيوال وي. ددې ټولګي شعار دادی: ((ټول سره يو ځای خلاصون مومو يا ټول سره يو ځای غرق کيږو)) دغه ټولګي لاندې ځانګړتياوې لري:

د ګروپ هيڅ غړی نه شي کولای په يوازې توګه بريالی شي مګر که ټول په يو ځای بريالیتوب ته رسيږي. هر شخص د خپلې زده کړې مسؤول دی او حق نلري چې په ګروپ کې بې کاره پاتي شي.

ددې لپاره چې ښوونکي په دې کار کې بريالی شي لاندې دري ټکي بايد په پام کې وساتي:

1. د اشخاصو چلند بايد په ګروپ کې په نظر کې وساتي.
2. د هغو ټولنيزو مهارتونو پايلې چې شاګردان يې په کار وړي. هغوی ته ووايي. او په دې کې مرسته ورسره وکړي چې له دې مهارتونو څخه زياته ګټه پورته کړي.
3. يوازې په لازم وخت کې د ګروپ په کار کې مداخله وکړي.

## ګروپي کار څنګه پيل کړو؟

لومړی له شاګردانو څخه وغواړي، په دې باب فکر وکړي چې له نورو څخه يې څه شی زده کړي دی او يايې د نورو په مرسته کوم کار سرته رسولی دی، يايې د چا ستونزه حل کړي ده. فکر وکړی چې له نور وسره دګډ کار خوند په ياد راولې او بيا لاندنيو پوښتنو ته ځواب ووايي:

1. ګروپونه څو کسيزه وي؟
2. کوم زده کوونکي يو ځای سره کار وکړي؟
3. چيرې کار وکړي؟ کومو وسايلو ته اړتيا لري؟

**د ګروپونو د اشخاصو شمير:**

په لومړی او دويم ټولګي کې ۳ – ۲ کسيزه

په دريم او څلورم ټولګيو کې ٤ – ۳ کسيزه

په لوړو ټولګيو کې ٤ کسيزه.

ليکن په ٤ کسيزه ګروپ هغه وخت کار پيل کړي چې کله ډاډ پيدا کړی چې هغوی د ګروپي کار په مفهوم پوهيږي.

۲. کوم زده کوونکي بايد له يو بل سره کار وکړي؟ ګروپ معمولاً بهتر کار کوي. ليکن مهمه داده چې زده کوونکي زده کړې چې له هر چا سره يو ځای کار وکړي.

۳. چيرې کار وکړي او کومو وسايلو ته ضرورت لري. د ګروپ د کار ځای ښوونکي او زده کوونکي يو ځای ټاکي . د وسايلو تهيه کول د ګروپ په غاړه واچوی په دې شرط چې ګروپ يې وکولای شي.

د ټولګيو درې ډولونه معرفي کوي: رقابتي، انفرادي او تعاوني ټولګي. ګډون کوونکي د هر يوه ټولګي په ځانګړتياوو (مثبت او منفي ټکي) يو له بل سره خبرې کوي او لاند نيو پوښتنو ته ځوابونه ورکوي:

1. دغه شعار په کوم ډول ټولګي پورې اړه لري: که ته يې وګټې زه يې بايلم، که زه يې وګټم ته يې بايلې.
2. د دو و نورو ټولګيو لپاره تاسې شعارونه ولیکی.
3. له رقابتي ټولګي څخه کوم ډول زده کوونکي ګټه پورته کوي؟
4. له انفرادي ټولګي څخه کوم ډول زده کوونکي ګټه پورته کوي؟
5. له تعاوني ټولګي څخه کوم ډول زده کوونکي ګټه پورته کوي؟
6. ايا رقابت په ټولګي کې تل بد دی؟ توضيح يې کړی؟

د ښوونکو لپاره مشورې :

1. د  رقابتي، انفرادي او تعاوني ټولګیو څخه د هر یوه ټولګي په ځانګړتیاوو (مثبت او منفي ټکي) یو له بل سره خبرې وکړي او لاندنیو پوښتنو ته ځوابونه ورکړي:

7. دغه شعار په کوم ډول ټولګي پورې اړه لري: که ته یې وګټې زه یې بایلم، که زه یې وګټم ته یې بایلې.

8. د دو و نورو ټولګیو لپاره تاسې شعارونه ولیکۍ.

9. له رقابتي ټولګي څخه کوم ډول زده کوونکي ګټه پورته کوي؟

10. له انفرادي ټولګي څخه کوم ډول زده کوونکي ګټه پورته کوي؟

11. له تعاوني ټولګي څخه کوم ډول زده کوونکي ګټه پورته کوي؟

12. ایا رقابت په ټولګي کې تل بد دی؟ توضیح یې کړی؟

## د دزه کوونکو پېژندنه

دماشوم وده( د زیږیدو له وخته څخه):

**دماشوم پر وده باندې مؤثر ټولنیز او طبیعي عوامل**

1. که چېرې دانې وکرلی شي او اوبه ورته ورکړی شي، په خپله وده کوي. دغه دانه (چې وروسته به ګیا ځینې جوړه شي) دیوه داخلي پلان او نقشې لرونکې ده چې د ودې خصوصیات ټاکي.

2. ماشومان هم دیوه داخلي پلان او طرحې له مخې، چې خدای پاک(ج) دوی ته بخښلی دی، وده کوي. د ودې دغه داخلي طرح او پلان نه داچې جسمي دی، بلکې رواني هم دی. له دې سره-سره چې ډېر ماشومان په صحي شکل نړۍ ته راځي، د دوی ذهن او روان د وخت په تیریدو سره نمو کوي.

3. که چیرې د نبات د ودې په وخت کې کومې موانع پیداشي د هغه ونه کږیږي ،نو په همدې توګه که دیوه ماشوم د طبیعي ذهني او رواني ودې په مخکې موانع پیدا شي، له ذهني او رواني اړخه کمزوری راځي.

4. هغه ماشوم چې په یوه متوازینه فضا او محیط کې وده وکړي دیوه غښتلي او قوي بوټې په توګه راځي، یو معتدل، متعهد، غښتلی، مهربان او له نورو سره مرسته کوونکی منځ ته راځي.

5. هغه ماشوم چې په یوه ناسالم (ناموزون) محیط کې چې له رواني غوښتنو سره برابر والی نلري، لکه بوټی چې کوږ شین شوی وی، وده وکړی، یو جاه طلب، باور نه لرونکی، بدبینه او ناموزون شخصیت ځینې جوړیږي.

- د لویانو د سلوک ځینې نمونې چې د ماشومانو سالمه وده ګډوډولای شي، په لاندې توګه دی:
    - سپکې سپورې او جزا ورکول (د ساده او طبیعي اشتباهاتو لپاره).
  - د ماشومانو سره له حده زیاته مرسته کول، په خاصه توګه ډېر واړه ماشومان او دوی ته وخت نه ورکول چې پرخپله دوی د تجربې له لارې کوښښ وکړی چې څه زده کړې.
    - په ډېره تندی انتقاد وربانډې کول (غیر ضروري اوله حده زیات).

- بې مورده رټل کول.
- وهل او ټکول.
- ماشومانو ته ددې وخت نه ورکول چې په خپله دوی تصمیم ونیسي او همدارنګه د دوی شخصیت او رایې ته ارزښت ورنه کړل شي او درناوی یې ونه شي.
- ماشومانو ته د پوښتنې اجازه نه ورکول.
- د ماشومانو څخه دا هیله کول چې یوازې د کتلو، اوریدلو او ویلو پواسطه زده کړې او په ګډه کار کې د برخې اخستلو د پاره وخت نه ورکول.

د لویانو ځینې کړنې (سلوک)چې د ماشومانو د ودې مرستندوی واقع کیږي.

- په دې عقیده پیداکول چې د غلطیو کول د ودې او رشد کولو طبیعي برخه جوړوي.

ماشومان پریږدی چې خطاګانې وکړي او له هغو څخه زده کړه وکړي.

- د ماشومانو پوښتنو، نکلونو، او تبصروته پاملرنه کول.
- ماشومانوته وخت ورکول او دا په دې معنی چې پر دوی باورکول دي.
- ماشومانو ته د ګټورو کارو سپارل چې دوی یې سرته ورسوي. ماشومان په خپله د کارونو او لوبو سرته رسولو څخه ښه زده کړه کوي.

## د ماشوم د ودې طبیعي مرحلې

د ماشومانو د جسمي ودې سره یو ځای، ذهن، روان، سلوک، رفتار او د هغو ضرورتونه هم بدلون او وده کوي.

د ماشومانو د ودې مرحلې کولای شو په لاندې توګه صنف بندی کړو:

1. د زیږیدو څخه تر شپږ کلنۍ(0-6).
2. د شپږ کلنۍ څخه تر 12 کلنۍ (7-12).
3. له 12 کلنۍ څخه تر 18 کلنۍ (13-18)

دغه صنف بندی ددې لپاره سرته رسیدلې ده چې ماشومان په پورتنیو هرې یوې مرحلې کې د ضرورتونو او علاقمندیو له اړخه توپیر لري.

### اول: د زیږیدو څخه- 6 کلنۍ (د ښوونځي څخه مخ کې عمر)

نړۍ د یوه نوي پیدا شوي ماشوم لپاره او ماشوم د نړۍ لپاره نابلده وي. نو ددې لپاره چې د خپل ځان او د چاپیریال د شیانو درک وکړی، د نوي پیدا شوي ماشوم ذهن او روان مادي او فزیکي نړۍ ته پام وي. غواړي چې هر شی لمس کړي، هر کوچني شي ته پاملرنه کوي، او د شیانو د رنګونو او شکلونو په برخه کې زده کړه کوي. او د خپل ځان په هکله زده کړه کوي، نو له دې کبله جسمي فعالیتونو ته ضرورت لري. یو ډېر بسیط کار، په تکرار سرته رسولو سره زده کوي. د شیانو ترتیب کول یې خوښیږي او په شیانو کې یې بدلون نه خوښیزي. ماشومان په دې عمر کې په عمومي توګه سلیقه او نظم رعایت کوي. ځکه دوی پخپله کوچني نړۍ کې نظم ته اړتیا لري. ماشومان په دې مرحله کې د کور د کارونو (هغه کارونه چې لویان یې کوي) په سرته رسولو خوشحاله کیږي. ددغه ډول کارونو سرته رسول د ماشوم له ذهني، رواني او جسمي ودې سره مرسته کوي.

ډېر غواړي یوازې کار وکړي، او یوازې لوبې وکړي. دماشوم فکر کول په دې مرحله مستقیم او ساده وي. دساده او لنډو جملو کارول یې خوښیږي او د شیانو د نومونو د پوهیدلو شوق لري په دې مرحله کې د ماشوم ذهن ډیر حساس وي او ډېرې کلمې د دوو کالو په اوږدو کې نسبت ټول عمر ته زده کوي.

### دوهم: له 6 – 12 کلنۍ ( د ښوونځي د لومړۍ دورې عمر)

په دې مرحله کې ماشوم د نړۍ مادي او فزیکي اشنایي محسوس وي او جسماً غوښتلی شوی وي او په اسانی سره تفاهم کولای شي. ذهن یې د لویې نړۍ لور ته راګرځي. جسماً او ذهناً له پلټنې(تجسس) سره مینه لري او د هر شي سره مینه پیداکوي. دده ذهن د شیانو، درک کولو او پیژندلو ته تیار وي. په ذهن کې یې زیات خیالونه (تصورات) را پیداکیږي، د نکلو او قصو څخه خوند اخلي. غواړي د لرې او نږدې شیانو د فعالیتونو په څرنګوالي پوه شي. هغو شیانو په هکله، چې پخوا یې نه وي لیدلي او نه یې لمس کړي دي، تر ډیره حده زموږ د خیالونو (تصوراتو) څخه زده کړه کوي، په دې چې وهڅول شي او ذهن یې په خوځښت راغلی وي. مهمه نکته داده چې ماشوم باید د چاپیریال د شیانو او نړۍ سره مینه دار کړای شي.

په دې مرحله کې ماشوم ډېر پلټونکی وي او کوښښ کوي چې سم او ناسم مفاهیم وپیژني. همدغه ده چې داسې ارزښتونو ته، لکه عدالت او اخلاق، په خپل ځان کې وده ورکړي. که چیرې په دې مرحله کې یو ماشوم د بې عدالتي او بې انصافۍ سره مخ شي، هغه د ښو او بدو (صحیح او غلط) په توپیر کولو کې ورکیږي او په ده کې د ګنګس کیدو احساس وده کوي. هغه ماشومان چې عمريې د 16 او 12 کلونو تر منځ وي،د د رسمي او سالمې ارادې د ودې په غرض د آزادۍ او عمل ټاکلو ته ضرورت لري. البته محدوده آزادي د شخصیت د ودې په غرض چې پر هغه کې باید د غلطی کولو او ټاکلو حق ماشومانو ته ورکړل شوی وي.

په دې مرحله کې ماشومان په پراخه پیمانه د ټولنې او نړۍ په باره کې زده کړه کوي او ډیر اجتماعي وي. نو له دې کبله د دوستان او هم همځولې ماشومان ډېر ارزښت ورته لري، چې له دوی سره یو ځای کار او لوبې وکړی. ماشومان په دې مرحله کې خپل ګروپونه لکه یوه ټولنه داسې ګڼي. یو له بل سره د خبروکول زده کوي او په دې ترتیب د بشري ټولنې جز ګرځي.

## دریم12-18 کلنی پورې (د ښوونځي د ثانوی دورې عمر)

ددغه عمر ماشوم له ماشومتوب څخه د تنکۍ ځوانی مرحلې ته د اخلیږی. دده ذهن د ژوند د عملي مسایلو سره لکه د مزد په بدل کې کار کول او د ټولنې، د کړو وړو، رفتار او نورو سره مخامخ کیږي. د ماشوم د جسمي ودې سره په یوه وخت کې ذهن هم وده کوي. کله-کله په ویره او وارخطایې هم اخته کیږي. اړینه ده چې د ماشوم په دې مرحله کې د اخلاقو او روزنې خاص حدود وټاکل شي مثلاً د درناوي، سلوك او یو بل سره د برخورد ساحه یو ډېر مهم او ضروری کار ددې مرحلې لپاره دغه ده، چې ماشوم کار کولو ته وګمارل شي او د مالي عایداتود لاسته راوړلو سره اشنایې، ترڅو د یوه مستقل شخصیت په توګه قدم پورته کړای شي. په دې مرحله کې ماشوم ته باید ډېر مسؤلیتونه وسپارل شي او له ده سره دی دیوه ځوان په شان عمل وشي، چې توانایي یې د یوه ماشوم څخه ډېره زیاته ده.

- د یادونې وړده چې دا مرحلې او عمر عام دی او ممکن په ټولو ماشومانو باندې په دقیقه توګه عملي نه شي، اما په مجموع کې هر ماشوم له دې مرحلې څخه تیریږي. هر ماشوم له هغې مرحلې څخه چې ذهن یې په مادي نړۍ متمرکز وي، یوې داسې مرحلې ته چې ذهن یې پلټونکی وي

او غواړي چې د بهرنۍ نړۍ څخه په پراخه توګه معلومات ولري، وده کوي. یو ځوان غواړي چې پوه شي چې له ده څخه لرې او ده ته نږدې نړۍ څنګه فعالیت کوي او دده ځای په هغه کښې څه شي دی او تلوسه لري ټولنه کې یو مستقل شخصیت شي.

- د ښوونکي لپاره ډېره مهمه ده چې دیو ماشوم لپاره په هره مرحله کښې چې وي د فعالیت زمینه برابره کړي. ترڅو په طبیعي او سالمه توګه وده وکړي. لکه څرنګه چې خدای پاک هر چاته د ودې او نمو وړتیا بخښلې ده نو له دې کبله باید زیار وباسو ترڅو هر ماشوم لکه غښتلې ونه مستقماً وده وکړي، نه د یوې کږې او کمزورې ونې په شان.

اوس نو د ښوونکو په څیر باید له ځانه وپوښتو، چې څرنګه کولای شو چې د تدریس طریقه او له ماشومانو سره خپل برخورد ګټور کړو. اوس چې د هرې مرحلې په ضرورتونو پوهیږو، څرنګه کولای شو چې د ماشومانو او زده کوونکو د ودې په سالمتیا او لاښه والي کې مرسته وکړو؟

## د ماشومانو د زده کړې اړتیاوې او د ودې د مرحلو ځانګړتیاوې

| عمر | ځانګړتیاوې | نتیجه محوره اړتیاوې او سلوک | دتدریس د طریقې تنظیمول او د هغه متقابله اثر |
|---|---|---|---|
| ٦- ٥ | حواس ډېر حساس وي او زده کوونکی له مادي او فزیکي نړۍ څخه زده کړه کوي. | هر شی ورته نا اشنا دی، ماشوم هر هغه شي ته چې لاس یې ورسیږي لمس کوي یې، هغه ته د لاس رسیدلو لارې زده کوي، هر شي په جدي توګه ترکتنې لاندې نیسي، هر کوچني شي ته پاملرنه کوي. | فزیکي چاپیریال باید محفوظ وي، ترڅو ماشوم پلټنه وکړای شي. د ماشوم حرکتونه باید محدود نه شي. ماشوم ته دط د لوبو شیان ورکړل شي ترڅو پر هغو لوبې وکړي او هغه شیان چې تودوالی، لنډوالی،رنګ، غږ او بوی ځینې محسوس شي باید ورته ورکړل شي. |
| | د ژبې زده کړه وده کوي. | ماشوم په طبیعي توګه کلمې زده کوي اما ډېر اوږده توضیحات یې نه خوښیږي هغه غواړي چې د شیانو نومونه وپیژني | په هره اندازه چې امکان ولري له ماشوم سره خبرې وشي او کتاب او نور ورته وویل شي. |
| | د ساتنې، آرامی او امنیت احساس ته اړتیا لري. | ماشوم بېرته د شیانو ځای په ځای کولو د تنظیم او ترتیب څخه خوند اخلي او د چاپیریال بدلون ته خوشحاله کیږي. | زیار مه باسی چې د ماشوم په چاپیریال کې بدلون راولی. د ماشوم چاپیریال (ټولګي، کور)پاک او منظم وساتی. |

| | | | |
|---|---|---|---|
| | هغه وخت هغه زده کړه کوي چې په خپلو لاسونو يې درسره کړي. | ماشوم په کور يا ښوونځي کې د کار په سرته رسولو خوشحاله کيږي که چېرې کوچنی مسؤليت ورتر غاړي شي په سرته رسولو يې خوشحاله کيږي. | د ماشوم لپاره د کار محيط او زمينه برابره کړی، ترڅو د اشتباهاتو په کولو سره زده کړه وکړي، ښېله دې چې ورته بد وويل شي. |
| | د کړنې په تکرار سره زده کړه کوي. | ماشوم يو عمل څو واره تکراره وي او ډېر لږ د سترتيا احساس کوي. | ماشوم پريږدی چې يو عمل څو، څو واره تکرار کړي او په پلټنه کې يې لاس وهنه مه کوي. |
| ٦-١٢ | خيال او تصور يې ډېر قوي وي. | د نکلونو او ډرامو اوريدلو له لارې ښه زده کړه کوي. | ښوونکی دې خپل درسونه د نکلونو په شکل ترتيب او بيان کړي. که امکان ولري ماشوم ته دې د قصې ويلو اجازه ورکړل شي. |
| | ډېر ټولنيز وي او له دوستانو سره يې اړيکې ډېرې مهمې وي. | ګډ کارونه يې ډېر خوښيږي او يوازې کار يې نه خوښيږي. | ښوونکي دې ګډ کارونه په خپل درس کې زيات کړی او ماشومانو ته دې وخت ورکړل شي چې په ګروپي توګه فعاليت اجرا کړي. |
| | ذهن يې وده کوي، ترڅو ډېره پراخه نړۍ و پيژني او غواړي چې توضيحات او دلايل واوري. | ماشوم ځيرک او پلټونکي دی او دې ته تيار دی چې هر شی پيدا کړي. که چيرې وهڅول شي نو د زده کړې ښېړ توان لري(خو ډېری وخت د ماشومانو له دغه توان څخه لږه ګټه اخستل کيږي.) | ښوونکي هغه څه چې درس ورکوي بايد له هغو سره مينه ولري او د ماشومانو د مينې پيداکولو لپاره بايد د هغوی ترمنځ ازاد رقابت رامنځ ته کړي. |
| | د مادي نړۍ د پيژندنې لپاره يې ذهن او جسم ځواکمن شوی وي. | ضرورت لري او فکرکول زده کوي. مادي او فزيکي شيانو محسوس والې لوړ ګڼي او غواړي ازادانه او خپلواکه پلټنه وکړي. | ښوونکی دې له ټولګي څخه د باندې ماشومان د تحقيقي کارونو لپاره وګماري (په چاپيريال يا د ولس په منځ کې، په ټولنو او سازمانونو کې) |
| | د سم او ناسم په اړه قوي احساس لري. | ضرورت لري ترڅو په اصولو او قواعدو او د هغو په دليلونو باندې پوه شي. غواړي چې له ده سره نيکه رويه او سلوک وشي او د ښو او بدو د ټاکلو په برخه کې حق ورکړل شي. | ښوونکي دې په اصولو او ضوابطو بحث وکړی. له ماشومانو سره په سلوک او رفتار کې بايد ډېر محطاط وي په ټولګي اوپه ټولنه کې دی د قضات کولو ښه نمونه مثال راوړي او د زده کوونکو لپاره دې د ښو او بدو د ټاکلو او تصميم |

| | | | |
|---|---|---|---|
| | | | نیولو وخت برابر کړي. |
| ۱۲-۱۸ | د ځواني په لورې تحول کوي. | ډېر احساساتي کیږي، سلوک او رفتار یې نیم کړی وی، جدل او بحث کوي او په عین حال کې ډاډه نه وي. | ښوونکی او الدین باید حوصله ولري او په عین وخت کې د اخلاقو، سلوک، ښوونې او درناوي په برخه کې محکم او مشخص حدود وضع کړي. |
| | پر ځان متکي کیدلو او د کار کولو پر لوري تحول پیدا کوي. | په ځینو وختو کې د دوی په کار کې د لویانو لاس وهنه پرې ښه نه لګیږي او په قهر کیږي | ښوونکي او والدین باید زده کوونکي ته مسؤلیتونه ورکړی. د ژوند عملي درسونه دی دوی ته بیان کړي. ښوونکي د زده کوونکو شخصیت ته په درنه سترګه وګوري او له هغو سره د لویانو په شان رفتار وکړي. |

## د ښوونکو لپاره مشوره:

لومړی مثالونه ولولئ او بیا له ښوونکو څخه وپوښتی چې که لویان د ماشومانو د ودې مرحلې ونه پیژني د ماشومانو په وړاندې د هغوی عکس العمل او چلند به څنګه وي؟

بیا پخپلو منځو کې بحث وکړی چې دوی مخکې د ماشوم د عمر او حالت په هکله څنګه فکر کاوه او له ماشومانو سره یې څنګه چلند کاوه. دغه راز په دې باب چې کله دوی د عمر په بېلابېلو مرحلو کې د ماشوم اړتیاوې وپیژندلې، د هغوی په چلند کی څه بدلون راغی؟

**لومړی مثال:** (یو پنځه کلن ماشوم د بوټونو دبندونو په تړلو ډېر وخت باسي):

<u>د ماشوم داروا پیژندنې له درک څخه وروسته:</u>

ښوونکی دڅو دقیقو لپاره بې صبرانه انتظار باسي، بیا ماشوم مخ او لاسونه شاته اړوي او پخپله د بوټونو د بندونو په بندولو پیل کوي. ښوونکی فکر کوي چې له ماشوم سره یې مرسته کړې ده، خو په حقیقت کی هغه ماشوم له زده کولو څخه منع کړي دی. هغه پیغام چې ماشوم ته رسیدلی دی دادی: (( ددې کار له سرته رسولو څخه عاجز پاتې شوی دی)).

د ماشوم د اړتیاوو له درک او پیژندنې څخه وروسته:

ښوونکی انتظار باسي چې ماشوم د بوټونو بندونه پخپله وتړي. او پخپله په چپه خوله انتظار باسي ترڅو ماشوم د بوټونو بندول پخپله زده کړي. په دې ډول ماشوم د بریالیتوب احساس کوي او پخپل ځان باندې یې ویسا او اعتماد زیاتیږي. که ماشوم د بندونو په تړلو بریالی هم نشي، تر هغو چې ماشوم مرسته نه وي غوښتي، ښوونکی یې کومک ته نه ورځي.

دویم مثال ( د څلورم ټولګي ماشومان )

( د څلورم ټولګي ماشومان چې نهه کلن دي، تل په خپل منځ کې خبرې کوي. یو ځای کار کوي او د یو بل پوښتنو ته ځوابونه وایي)

د درک او پیژندنې څخه مخکې:

ښوونکی فکر کوي چې زده کوونکي په ټولګي کی شوخی کوي او شور یې جوړکړي دی. په مکرر ډول هغوی ته په لوړ آواز امر ورته کوي چې چپه خوله شي، له یو بل سره مطالعه ونکړي، خبرې و نکړي او هر څوک یوازې کار وکړی.

له درک او پیژندنې څخه وروسته:

ښوونکی درسونه داسې ترتیبوي چې زده کوونکی (له ٦ – ١٢ کلن ) زیاتره په ګروپي کارونو (په ګډه کار) کې مصروف شي. په نتیجه کی ماشومان د ګروپي کارونو له اجرا څخه په ښه ډول زده کړه کوي.

دریم مثال ( دپنځم ټولګي زده کوونکی):

دپنځم ټولګي زده کوونکی چې لس کلن دی، د تاریخ د مضمون د لوستلو په وخت کی ډیر ستړی معلومیږي.

د پیژندنې او درک څخه مخکې:

ښوونکی په غوصه کیږي او په شاګرد چیغې وهي یا هغوی وهي ټکوي. د ویرې او سپکاوي په ذریعه زده کوونکی دې ته اړ باسي چې درس ته پام وکړي.

د ماشومانو د علاقي او ذهني ودې له درک څخه وروسته:

ښوونکی پوهيږي چې زده کوونکي ( ٦ – ١٢ کلونو په منځ کی) اړتيا لري چې خپل تصورات او خيال په کار واچوي، نو د تاريخ د مضمون درسونه د خوندورو کيسو په شکل تشريح کوي او زده کوونکو ته ددې امکان ورکوي چې د کيسو د قهرمانانو نقش ولوبوي او ددې لپاره چې د زده کوونکو تخيل نور هم په کار واچوي له هغوی څخه پوښتنې کوي چې دکيسې پاتې صحنې به څنګه وي.

څلورم مثال ( شپږ کلن ماشومان او په ليکلو د ګوتو ماتول ) يو شپږ کلن ماشوم په ډېر تکليف د هيجا توري درست ليکي.

له درک او پيژندنې څخه مخکې:

ښوونکی فکر کوي او بلکې ماشوم ته وايي چې ډېر سوکه دی. ماشوم مجبوروي چې په مکرر ډول عين توري په کتابچې کې په پنسل سره وليکي ( سره له دې چې دغه ميتود له ماشوم سره په زده کړه کی مرسته نه کوي). ماشوم بيا بيا غلطي تکراروي او په عين وخت کې کوشش کوي پنسل په صحيح شکل په لاس کی ونيسي.

د ماشوم د اړتيا وو له درک څخه وروسته:

ښوونکی ماشوم له ټولګي څخه بهر بيايې او ورښيې چې څنګه کولای شي په ځمکه په لاس ليکل وکړي، په ځمکه د يوه توري ليکل داسې ورښيې چې دهغه ګوتې په کار ولويږي. ښوونکی يوه لوي ماشوم ته وايي چې يو توری په ګوتو د ځمکې په مخ وکاږي. وروسته وړوکی ماشوم له هغه څخه پيروي کوي او د ګوتو په ذريعه په ځمکه ليکل کوي. په دی ډول ماشومان زده کوي چې څنګه په ګوتو سره د ځمکې پرمخ توري وليکي.

بل ځل ( ښايي له څو ورځو وروسته ) ښوونکی ماشوم ته و ښيي چې څنګه ليکل کيږي. ماشوم د څو ورځو لپاره د هغه مشق کوي. وروسته له هغه چې ماشوم په دې کار کې بريالی شو، په کتابچې کې دپنسل سره په ليکلو پيل کوي.

پنځم مثال ( ١١ کلن ماشوم او ځيرکتيا):

يو ١١ کلن ماشوم په ټولګي کی ډيرې افاقي پوښتنې کوي چې د کتاب د متن څخه بهر وي، دمثال په توګه د ځمکې د کري، اسمان، نورو ملکونو او کليو په باره کې پوښتنې کوي.

له درک او شناخت څخه مخکې:

ښوونکی بې حوصلې کيږي او ماشوم ته په غوصه کيږي. فکر کوي چې ماشوم بې ځايه مزاحمت کوي او بې ادبه دی. په غوصې سره ماشوم ته وايي چې نور دې پوښتنې نه کوي او يا د هغه پوښتنو ته ځواب نه وايي، خصوصاً په هغه صورت کی چې سوالونو ته ځواب ونلري.

د ماشوم دځيرکتيا له درک او پيژندنې څخه وروسته:

ښوونکی د ماشوم پوښتنوته په ښه طريقه ځواب ورکوي. پردې برسيره هڅه کوي چې داسې کتاب پيدا کړي چې پکښې د دنيا نقشه وي، او شاګرد ته يې ورکوي چې پخپله يې ووايي. (که دغه ماشوم يا نور ماشومان دلچسپي ولري). که ښوونکی کوم بل څوک وپيژني چې پوښتنو ته ځواب لري، هغه سړی يوه ورځ د ښوونکي په څير ټولګي ته رابولي. که ښوونکی په پورته ذکر شوي ميتود کی ببرته پاته شي او نور وسايل ونلري، بيا هم ماشوم مه نا اميده کوی، بلکې هغه دې ته هڅوی چې پوښتنو ته ادامه ورکړي. البته په هغه څه چې ښوونکی نه پوهيږي له ځان سره يې بايد وليکي او تل د هغو په ځوابونو پسې لټه وکړي.

## په ښوونځي کې دزده کوونکو ستونزې

په دې کې شک نشته چې کله ماشومان د خپل خواږه کور څخه يو نا آشنا ځای ته چې ښوونځی نوميږی راشي ، نو ډيرې ستونزې او اړتياوې به لري. د وړکتون رواج خو زموږ په هېواد کې نشته او د اوسنيو حالاتو په نظر کې نيولو سره په نژدې راتلونکی کې ددغه ډول اسانتياوو امکان هم کم بريښي. نو کله چې ماشومان په لومړي ځل يو نا اشنا ځای ته چې ډير محدوديتونه پکې وي، مقررات، نوي خلک او نوي آمران ولري، ډاريږي او ورخطا کيږي. ځينو به شايد په جومات کې زده کړې وي، ځکه زموږ دکليوالی او سيدونکو لپاره په جومات کې زده کړه (ترښوونځي مخته ) دوړکتون بديل ګڼل کيدای شي، خو امکان لري ټولو ماشومانو په مسجد کې زده کړه نه وي کړي.

### د ښوونکی مسؤليت

مهمه خبره داده چې ښوونکي د زده کوونکو په دغه ډول اړتياو خبر وي او په نظر کې يې ونيسي . برسيره پردې ښوونکی بايد په دې هم پوي وي چې مختلف زده کوونکي د دغو اړتياوو له اړخه متفاوت وي.

ښوونکی باید د امکان تر حده خپل زده کوونکي او د دوی اړتیاوې او وړتیاوي وپیژني.

تر ټولو مهم کار چې ښوونکی یې باید وکړي هغه په ماشومانو کې د ویرې له منځه وړل او یا کم ترکمه کمول دي. په دې کار سره به زده کوونکي ددې جرئت پیداکړي چې د خپلو ستونزو او اړتیاوو په اړه مرسته وغواړي او یا یې پخپله د حل کولوکوښښ وکړي ، نه داچې خپلې اړتیاوې له ویرې پټې کړي.

ښوونکی همدا راز د زده کوونکو اړتیا وې داسې سره بېلې کړي چې ځینې د ټولو زده کوونکو ګډې وي او د ښوونکي په لارښوونو او یا معلوماتو ورکولو حل کیدای شي. مثلاً زده کوونکو ته د ښوونځي ځای، ټټی، د څښلو اوبو او نورو په هکله معلومات ورکړل شي. د زده کوونکو ځینې اړتیاوې کیدای شي ځانګړې مرستې وغواړي. ښوونکی باید ددغه ډول اړتیاوو په هکله لازم تدبېر ونیسي.

تاسې خپل ماشومتوب در په یادکړي او کوښښ وکړي چې هغه ستونزې چې تاسې د ښوونځي په لومړیو ورځو کې ورسره مخ واست او دا چې تاسې څنګه احساس کاوو ور په یاد کړي ترڅو د نورو ماشومانو حالت درک کړي.

هغه مشکلات چې ماشومان د ښوونځي په لومړنیو ورځو کې ورسره مخ کیږي:

په ښوونځي کي د ماشومانو ځینې ستونزې داسې وي چې د ښوونکی په لږه پاملرنه او مرسته رفع کیدای شي خو ځینې بیا د اوږده وخت زیار ته اړتیا لري.

د ښوونځي په لومړنیو ورځو کبد ماشومانو د ستونزو ځینې  مثالونه چې ښوونکی یې په اسانی رفع کولاي شي په لاندې ډول دي.

له ښوونکی یا  نورو زده کوونکو څخه ویره.

له غلطي کولو څخه ویره.

له مقرراتو سره نابلدي.

د مکتب سره نا بلدي.

د اړتیا او ستونزې د بیانولو جرات نه لرل.

په دې نه پوهیدل چې له چا څخه مرسته وغواړي او څنګه.

د انساني ضرورتونو د رفع کولو په هکله معلوماتو ته نه درلودل( اوبه ،ډډی ، لوږه ).

د ښوونکی غیر عادلانه چلند-(د زده کوونکو ترمنځ فرق کول).

نابلده وظیفي ورته سپارل کیدل.

له نورو ټولګیوالو څخه وروسته پاتي والی.

د زده کوونکو هغه اړتیاوي او ستونزې چې اوږد مهاله تلاش او د نورو مرستې ایجابوي:

نااشنامحیط (د وخت په تیریدو ورسره عادت کیږي)

د پلار او مور څخه لري کیدل(د وخت په تیریدو ورسره عادت کیږي)

د کتاب او ښوونځي په ژبه نه پوهیدل(د ماشوم مورنی ژبه د تدریس له ژبې سره فرق لري)

- ناروغتیا
- بې جرأتي
- په زده کړه کې مشکلات لرل
- د زده کړې خاصې اړتیاوې لرل لکه  معلولیتونه

هیجاني اړتیاوې لکه نازولتوب، نااړمتوب، غلیتوب، بې حوصلګي او نور.

دغه ډول ستونزې که رفع نه شي د زده کوونکو په زده کړه او د زده کړې لپاره په تیاری منفي اغیزې کوي. ځینې منفي اغیزې یې موقتي وي اوځینې یې بیا اوږ مهاله منفي تاثیرات لري.

ښوونکی باید چې په لومړنیو ورځو کې ددغو ستونزو د رفع کولو لپاره یو څه وکړي. ترڅو چې له یوې خوا زده کوونکي ښوونځي ته خوشحاله راشي او له بلې خوا په نورو ستونزو دبر لاسی توان پکې پیاوړی شي.

د زده کوونکو سره څنګه مرسته کولای شو چې د دوی اړتیاوې پوره شي؟

په لومړیو ورځو کې د ښوونځي تعمیر او چاپیریال سره د زده کوونکو بلدول لومړی قدم دي ترڅو خپل ټولګي، د څښلو اوبه ډډی او نور پیداکړای شي.

ښوونکی د لومړنیو مقرراتو په هکله زده کوونکو ته معلومات ورکړي چې مثلاً د رفع حاجت لپاره هیڅ کوم ممانعت نشته او فقط د لاس په جګولو سره اجازه ورکول کیږي او نور...

دا هم ډېره مهمه ده چې ښوونکی په خاصه توګه په  لومړنیو ورځوکې د زده کوونکو په نسبت داسې فکر وکړي چې دوی په ښوونځي کې د مقرراتو، ځای، چاپیریال، قیوداتو او نورو سره د بلدیدو او مراعات کولو لپاره وخت او پوهیدلو ته اړتیا لري. نو په دغو ورځو کې د ماشومانو هیڅ عمل غلط ونه ګڼی بلکې د زیات زغم څخه کار واخلی او د دوی د هر غلط عمل په مقابل کې دوی ته ښوونه وکړی او د قهر او ګواښ نه ډک چلند څخه ډډه وکړی.

له زده کوونکي سره باید مرسته وشي چې په ځان اعتماد پیداکړي ځکه چې په ځان باور په اړتیاوو د برلاسی لومړی او مهم شرط دی. زده کوونکی باید ډاډمن او پوهه شي چې د دوی غلطي زغمل کیږي خو دوی باید د غلطیو د اصلاح لپاره زیار وباسي. د زده کوونکو ښه کار باید وستایل شي ترڅو دوی په ځان باوري شي او ځان ته درناوي وکړي او په ټیټه سترګه ځان ته ونه ګوري.

ښوونکی باید اضافي لارښوونې هم وکړي لکه جنګ کول ډیر بد کار دي، که څوک وړی کیږي. نو وچه ډوډي له کوره درسره راوړی او په تفریح کې یې وخوری، ښوونځی دکور په شان وبولی او هر مشکل چې لری ماته یې ووایی او نور. "

ډېره مهمه داهم داده چې ښوونکی د زده کوونکو نومونه زده کړي او دوی ته په احترام قایل شي. هیڅ کله باید دوی په بدو نومونو یاد پلار په نوم ( مثلاً د فلانی زویه ) ونه نوموي.

## د ښوونکو لپاره وړاندېزونه او د بحث ټکي:

قدرمنو ښوونکو! تاسې په ګډه سره د لاندې پوښتنو په هکله بحث وکړی:

آیا ستاسې ټول زده کوونکي د اړتیاوو او وړتیاوو له اړخه یو شان دي؟ خپل دلایل ووایی.

تاسې پخپل ټولګي کې زده کوونکي له کومه اړخه او په څو ډولو ویشلای شئ؟

آیا داسې زده کوونکي لری چې په زده کړه کې ستونزې لري؟ ولې دغه ستونزې لري؟ ددغه راز زده کوونکو په اړه څه کولای شئ؟

که په ټولکي کې په لاندې ډول ماشومان ولرئ:

یو ماشوم د غریبې کورنۍ څخه دی یا سرپرست نلري او مجبور وي چې په کور کې له وخته وروسته کار وکړي او تاسې ته معلومه شوه چې درسونه یې سم نه دي زده کړي.

یو ماشوم ډیر لایق او ذهین دی او ورسپارل شوي دنده تل تر نورو ملګرو مخکې خلاصوي او بیا نورو ته مزاحمت کوي.

د یوه شاګرد مو ژبه دریږي او کله چې په جهر درس لولي، نو نور ور پورې خاندي.

تاسې به له دغه ډول زده کوونکو سره څه کوئ؟

# د زده کوونکي پيژندنه

## ټولو زده کوونکو ته د زده کړې په فعالیتونو کې ونډه ورکول

ښوونځي ته هر زده کوونکی ددې لپاره راځي چې زده کړه وکړي خو له بلې خوا ټول زده کوونکی له یوبل سره فرق لري – ځانګړې وړتیاوې، علاقې، د ذهني ودې مرحلې او هیجاني حالتونه لري. برسیره پردې زده کوونکی په مختلفو ډولو زده کړه کوي – څوک له کتابه ښه زده کړه کوي، نور بیا د ښوونکي لخوا د تشریحاتو څخه، ځینې بیا له خپل ملګري څخه، ځینې نور په ځانګړي توګه، حتي هم له نورو سره په ګډه زده کړه خوښه کړي.

زموږ په هېواد کې ستونزه داده چې له یوې خوا په ټولګي کې د زده کوونکو شمیر ډیر وي او له بلې خوا ښوونکی هم فعالیتونه په طرحه کې ستونزې لري. داسې فعالیتونه چې ټول زده کوونکی ترې زده کړه وکړي. برسیره پردې د وخت کموالی او د موادو نشتوالی هم ښوونکی مجبوروي چې په تدریس کې د محدودو طریقو څخه کار واخلي.

نتیجه یې دا شي چې ځینې زده کوونکي ښه زده کړه کوي او ځینې نور بیا په زده کړه کې وروسته پاته کیږي. دغه کار له یوې خوا ځینو زده کوونکو ته د زده کړې ستونزې زیاتوي (مثلاً نوره زده کړه نشي کولای) او له بلې خوا د تکړه او ضعیفو زده کوونکو ترمنځ فاصلې زیاتوي چې دا کار د ښوونکو لپاره تدریس ستونزمن او بې خونده کوي.

### څه باید وشي؟

- ښوونکی باید تر ټولو مخته خپل زده کوونکي د دوی د ځانګړتیاوو له مخې وپیژني.
- درس باید داسې طرحه او پلان کړي چې د زده کړې متنوع فعالیتونه په کې وي لکه د ښوونکی لخوا موضوع تشریح کول ( لکچر ) جوړه یزکار، د کتاب له مخې ویل، تجربه کول، ګروپي بحث کول، لوبې، سوالونه ځوابول، له ټولګي د باندې فعالیتونه او نور.
- هغو زده کوونکو ته چې د زده کړې مشکلات لري، مناسب فعالیتونه او اضافي مرسته ورکړل شي ( دا کار پخپله ښوونکی او یا د نورو زده کوونکو په مرسته کولای شي ).
- د نوي درس د وړاندې کولو په وخت کې باید د زده کوونکو موجوده پوهه اوسویه په نظر کې ونیسي، یعنې ځان په دې مطمئن کړي چې ټول زده کوونکي ګټه ځینې اخیستلای شي.
- د امکان تر حده له مختلفو درسي موادو څخه کار واخلي.
- د زده کوونکو غلطی وزغمي، اصلاح یې کړي او هیڅکله له تهدید او تحقیر څخه کار وانه خلي.
- ښوونکی کوښښ وکړي چې د درس په جریان کې له ټولو زده کوونکو سره رابطه وساتي یعنې ټول شریک کړي.

### څنګه زده کړه کوو؟

خلک په مختلفوطریقو زده کړه کوي. ځینې هغه طریقې چې ماشومان او لویان پرې زده کړه کوي په لاندې ډول دی.

- د ویلو په واسطه : دمثال په توګه دمیندو، پلرونو او ښوونکو لارښوونې یا بیانونو او راډیو ته غوږ نیول.
- د لوستلو پواسطه.
- دیوې ستونزې او د هغې آواری په اړوند دکوښښ او فکر کولو په واسطه او بیا په دې فکر کول چې دیوې ستونزې د مختلفو حل لارو لپاره وړاندېز او دی ته ځیر کیدل، او دا ستونزه څنګه آواره شوه.

- د تجربه کولو په واسطه یعنې د یو کار عملي اجرا کول، او د هغې څخه زده کړه کول او تجربه میندل.کومه لاره ښه ده .
- دخیال یا تصور کولو په واسطه د سترګو تړل او د یوې پیښې یا یو داستان په ذهن کې انځور کول.
- له نورو څخه تقلید کول.
- دمعلوماتو د زده کولو یا د حفظولو او له هغو څخه په نویو موضوعاتو کې دکار اخیستلو له لارې.
- د دوامداره تمرین له لارې.

څوک د زده کړې لپاره پورتنۍ ټولې لارې کاروي او څوک بیا نورې لارې کاروي. خو ځینې خلک د ځینو خاصو طریقو له لارې ښه زده کړه کولای شي خو په ځینو نورو طریقو بیا زده کړه نشي کولای.

مخکې به مو غالباً د ماشومانو په اړوند، چې په یوه معینه طریقه یې زده کړه سمه نه شوای کولای، فکر کاوو چې دوی نا پوه دي، خو اوس پوهیږو چې د استعدادونو (وړتیاوو) مختلف ډولونه شته. د مثال په توګه ټول ښوونکي پوهیږي چې ځینې ماشومان په ریاضي کې تر نورو ماشومانو ښه دي او ځینې یې دکلمو په لیکلو کې تر نورو ماشومانو ښه دي. ځینې ښه حافظه لري او ځینې په رسمولو او خطاطۍ کې غښتلي دی. ځینې نوښتګر او ځینې تحلیلګر دي. مخکې به مو غالباٌ د لایقتوب یا نالایقتوب ټاپې په ماشومانو وهلې خو اوس پوهیږو چې دغه توپیرونه د لیاقت (وړتیا )مختلف ډولونه دي. داستعدادونو ځینې ډولونه په لاندې ډول دي:

عددي وړتیا په حساب او الجبر کې ښه والی، په جغرافیه کې د نفوس یادول او دتاریخ په مضمون کې په پیښو او سیمو کې وړتیا.

- بصري وړتیا - په هندسه ، رسامۍ، تصویرونو، د جغرافیې په نقشو کښلو کې ښه والی.
- هیجاني ذکاوت( وړتیا)- په دې ښه پوهیدل چې نور خلک څرنګه احساس کوي، په نوښتیزو لیکنو، شعرونو او داستانونو کې ښهٔ والی.
- ژبنی ذکاوت - په لوستلو ، لیکلو اوګرامر کې تکړه توب والی.

- منطقي ذکاوت – د دلیلونو په تحلیل کې، د تاریخ او ساینس دګټو په پوهیدو، دکمپیوټر په کارولو، درېاضي په مضمون کې د سوالونو په حلولو کې غښتلتوب.

له بده مرغه د ښوونځیو اکثره درسونه د دوو یا دریو خاصو کټګوریو سره سم سرته رسیږي. ډېر ښوونځي د استعدادونو او وړتیاوو نور ډولونه له پامه غورځوي. د مثال په ډول نوښتګری، حساسیت، تخیل او تجربه معمولا نه تشویقیږي. ددې نیمګړتیاوو پایله په ښوونځیوکې دوړتیاوو او د هېواد دبا ارزښته بشري سرچینو لپاره لوي زیان دی. ( مثال په توګه : البرت انشټاین یو لوي عالم او پوه د څېړنې (ریسرچ) لپاره په پوهنتون کې خپله درخواستي ورکړه، خو ښوونکوو فکرکاوه چې دی یو ګډوډ او بې اصولو سړی دی او د عالم کیدو پوره ذکاوت په کې نشته، نو لدې امله دی د څیړني لپاره په پو هنتون کې ونه منل شو.

ددې واقعیتونو په نظر کي نیولو سره باید لاندې ټکي په پام کي وي:

- باید په دې پوه وو چې ټول زده کوونکي او ماشومان د مختلفو وړتیاوو او کمزوریو لرونکی دي.
- تر ممکنه حده په ټولګیو کې د ماشومانو وړتیا او کمزورئ تشخیصول ( البته په لویو ټولګیو کې ګرانه هم ده ).
- دداسې صنفي فعالیتو نو طرح کول چې زده کوونکو ته په مختلفو لارو د زده کړې چانس ورکړي.
- له ماشومانو وړتیاوو ته د ودې په ورکولو کي مرسته کول.
- له ماشومانو سره د هغوی د ضعفولو (کمزورتیا وو) د کمولو یا له مینځه وړلو د طریقو د پیژندنې په اړه مرسته کوي.
- ټولو ماشومانو ته ارزښت ورکول، نه داچې یوازې لایقو ماشومانو ته توجه وشي. ځینې ماشومان به په پیل کې ذکې نه ښکاري خو د دوی پټ استعدادونه او وړتیاوې به وروسته په حیرانوونکی توګه راڅرګندی شي.
- دا درک کول چې ټول ماشومان د ښوونې او روزنې برابر حق لري.

- په دې پوهيدل چې ذکي ماشومانو ته تدريس اسانه دی، خو ديوه ښوونکی لپاره ربښيتنی چلنج له هغو ماشومانو سره مرسته ده چې درسونه ورته ګران ښکاري. ذکی ماشومان په هره چاره زده کړه کولای شي. خو دټيټ استعداد لرونکي ماشومان ډيري پامرني او ښوونې ته اړتيا لري.

**د ښوونکو لپاره وړانديزونه او د بحث ټکي:**

- آيا ښه به وي او که نه چې له ټولو زده کوونکو څخه د يو ډول فعاليت اجرا وغواړی؟ ولې؟
- که ډير اسانه فعاليت ورکړي، د کومو زده کوونکو ( تکړه او که کمزورو) په ګټه به وي؟ ولې؟

په خپل مضمون کي دداسې فعاليتونو مثالونه راوړی چې هم يې په اسانه تيارولای شی او هم د ټولو زده کوونکو برخه اخيستنه په کې ممکنه وي.

# درسي کومکي مواد

## درسي کومکي مواد او د هغو ګټې

له درسي کومکي موادو څخه ګټه اخيستنه له پخوا څخه په ښوونه او روزنه کې رواج درلود. پوه ښوونکي او ددې هنر استادانو زحمت ايستلی ترڅو درسي لارې او طريقې ولټوي چې د هغو په وسيله وکړای چې مفاهيم او مطالب په آسانه توګه زده کوونکو ته انتقال او ولېږدوي.

هغه درسي کومکي مواد چې په تدريس کې مهم رول لري په اسلامي تعليماتو او ارشاداتو کې ورته ډېر اهميت ورکړ شوی دی. په عظيم الشان قرآن کې هميشه د (لوح او قلم) يادونه شويده، حضرت محمد (ص) دين او دنيا د لارښود په حيث، کله چې به يې تبليغ او وعظ کاوه نو د موضع د روښانه کولو په خاطر به يې په ځمکه باندې د مخصوص وسايلو په واسطه کرښې کښلې، امام غزالي (رح) په خپلو ليکنو کې د پيژندنې اساسي وسيله تجربه ښودلې ده چې په حقيقت کې تجربه بې له موادو امکان نلري. يوناني فيلسوف فيثاغورث د خپل کار د مضامينو او مطالبو د واضح او روښانه کولو لپاره له هندسې شکلونو څخه د ځمکې د کرې له پاسه ګټه اخسته.

**تعریف**

درسي کومکي مواد د هغو شیانو او وسایلو څخه عبارت دي چې ښوونکي او زده کوونکي سره د درس د موخه په لاس ته راوړلو کې مرسته کوي. او یا په بل عبارت درسي مواد له هغو څیزونو او شیانو څخه عبارت دی چې د ښوونکي په شاو خواکې په اسانه توګه پیدا کیږي او په تدریس کې ګټه څینې اخیستل کیږي او یا هر هغه شي چې په محیط کې موجود دی او په زده کړه کې په مناسبه توګه استعمال لیدای شي د درسي مواد و په نوم یادیږي.

## د درسي کومکي موادو اهمیت

یو څوک غواړي ۳۰ کیلومتره واتن ووهي، کچیرې نوموړی سړی پیاده ولاړ شي لږ ترلږه لس ساعته وخت ورته پکار ده، خو که چیرې د وسایلو څخه کار واخلي نو معلومه خبره ده چې په لږ وخت کې به موخه ته ورسیږي وسایل لکه بایسکل، موټر او تلیفون که چیرې په نظر کې ونیسو: نو که چیرې له بایسکل څخه کار واخلي امکان لري په پنځه ساعتونو کې نو موړی واتن ووهي او که چیرې د موټر په واسطه لاړ شي ممکن په نیم ساعت کې منزل ته ورسیږي. او که چیرې د تلیفون څخه کار واخلي ممکن په پنځه دقیقو خپل مشکل حل کړي او خپلې موخې ته ورسیږي.

ښوونکي کولای شي زده کوونکي له درسي موادو پرته هم مصروف وساتي، خو هغه خوند، اسانتیاوې او دلچسپي چې د درسي موادو استعمال په تدریس کې ښوونکي او زده کوونکي ته وربخښې بې له درسي موادو وجود نلری د درسي مواد استعمالول او په کاروړل تنوع منځ ته راوړي او د مشق او تمرین زمینه برابروې. زده کړه له میخانیکې ډول څخه راباسي او زده کوونکو ته زده کړه په عینې او مشاهدوي توګه وړاندې کوي او زده کړه له لنډ مّاله حالت څخه په دایمي او دومداره حالت بدلوي.

د ځینو تخنیکي مواد په مرسته لکه راډیو، ټیپ ریکارډ، تلویزون او نورو په وسیله کولی شو چې د تیر وخت پیښې زده کوونکو ته لږ وخت کې ور وښیو چې هم زده کوونکو او هم ښوونکو ته په زړه پورې او ګټور وي.

## د درسي کومکي موادو ګټې

ولې د درسي موادو څخه ګټه اخلو:

1. څکه چې: زده کوونکي ډېر متحرک او فعال دی. د حواسو تحرک( لیدنه، اوریدنه، بویونه او د درک حس) یې هم صورت نیسې د بېلکې په توګه ( د کاغذي ساعتونو پکار وړل د وخت د ښوولو لپاره).
2. درس ډېر په زړه پورې او د اوریدلو وړ ګرځي، ښوونکي ژر موخې ته رسیږي.
3. عملي مهارتونه قوي کیږي او د ذهن د انکشاف سبب ګرځي.
4. د زده کونکو د ویلو او پوهولو مهارت مؤثر کوي.
5. د زده کوونکو ته د درس موضوع اسانه کوي او درس د زده کوونکو په ذهن کې ښه کښیني.
6. زده کوونکي د لچسپي او علاقه ځرګندوی او ستړتیا نه حس کوي.
7. په درس کې بدلون راځي او د معلوماتو د زیاتوالې سبب کیږي.
8. درسي مواد د فعالیت سرته رسولو سبب ګرځې او ماشومان د فعالیت د سرته رسولو پواسطه ښه زده کړه کوي.
9. درسي مواد د زده کوونکو د برخې اخیستنې وخت زیاتوي.
10. تدریس مجسم کوي.

## د ټولګي تنظیمول

دیوه ښوونکي په دندو (دندو) کې د لاندې شیانو تنظیمول شامل دی.

- خلک: (ماشومان، زده کوونکي).
- وخت.
- مواد: (کتابونه، چارتونه، قرطاسیه، درسي مواد...).
- فضا: (ټولګی)

**خلك**

- د ټول ټولګي ماشومان تنظیمول، واړه ګروپونه، جوړه، او انفرادي ګروپونه. دا ټول د زده کړې د دندې په ماهیت او د درس په موخو پورې تړلې ده.
- د ټولګي کنترول او د سیپلین.
- منظم ګروپونه د خاصو دندو لپاره. دمثال په ډول د ټولګي پاکول (صفایې) او همدارنګه د زده کړې (مختلف) فعالیتونه.

**وخت**

- د درسي نصاب د محتوی سره سم تدریس کول.
- زده کوونکو ته د خاصو شرایطو (ضرورتونه) په پام کې نیولو سره د ورکړل شوی وخت په نظر کې نیول لکه (ورو ((بطي)) زده کوونکو، ژر ((تیز)) زده کوونکي، احساساتې ستونزې او یا نور ناتوانې لرونکي ماشومان، جینکی وي اوکه هلکان ).
- د مهارتونو د تمرین لپاره د کافي وخت اهتمام.
- د مختلفو فعالیتونو په ګډه (یو ځاي) کولو اهتمام

**مواد**

- لاس رسي، د موادو د منظم او ترتیب سره ځای په ځای کول ترڅو د ضرورت په وخت کې موجود وی.
- ګودام کول (ساتنه)، (د مختلفو سایزو لوښې((ظروف)) را غونډول)
- نمایش (ښودنه) ( لاندې د فضا مثالونه وګوری)

**فضا**

- د ټولګي پاکوالی (صفایې)
- د ماشومانو دلاسي کارونو ننداره کول (وقتاً فوقتاً بدلیږي).
- په زړه پورې ننداره ښوودنه.

- په دیوال ځوړند شویو چارټونو، نقشو... ، او نورو ساتنه او حفاظت (پلاستیکې پوش ورکولو سره).
- په دیوالونو باندې د شیانو د بندولو لاربښوونه.(تار، سیم، د نمایش تختې، ..... او نور).
- د فرنیچر (میز او چوکی) په ترتیب ایښودل (که موجود وي) ( د چوکیو برابرول، ګروپي شکل، دایروي شکل او د قطار په شکل).
- د ماشومانو هڅول (تشویقول) چې په خپل ټولګي وویاړي او داسې وګڼي چې ټولګی د دوی لپاره ځانګړی ځای دی.

**د ټولګي د کنترول دوه مهمې طریقې**

د ټولګي د تنظیمولو دوه مهمې مسئلې:

- د لویو ټولګیو تنظیمول (له 40 زیات)
- دټولګي کنترول (دتحسین او ترټنې په شمول )

دټولګي د کنترول دوه لارې:

1. د مخ له طرفه کنترول:

ښوونکي په خپل حضور او موجودیت سره ټولګي کنترولوي. ډېر ښوونکي ښه په اوچت اواز خبرې کوي. ډېر تجربه کار ښوونکي په دې کار کې ماهر وي د زده کوونکو سره ښه تفاهم کوي. ښوونکي پوښتنې کوي او ماشومانو د ځواب ورکولو لپاره خپل لاسونه پورته کوي، ډېر تاکید په توره تخته وي، نو تقریباً درس ټول ماشومان احتوا کوي دا تر ډېره معلم محوري طریقه ده، نو ځکه د ښوونکي لپاره پوره ستړې کوونکې ده.

د دغه ډول کنترول ځانګړتیاوې (مشخصات): اصلي غږ چې اوریدل کیږي د ښوونکي غږ دی چې کله-کله د ماشومانو د ځواب ورکولو له غږنو سره بدرګه کیږي.

2. په ګروپي کارو کې د ماشومانو مصروف ساتلو په ذریعه کنترول:

په دې صورت کې ښوونکي د تنظیموونکي دنده لري. ماشومان یې په دندو کې په ګمارلو سره مصروف او کنترول کړی دی، البته داسې دندې چې ماشومانو ته ډېرې په زړه پورې دي. په دې صورت کې ماشومان لږ ترکنترول لاندې وي، خو هغوی د هغه څه په کولو بوخت دي چې ورته په زړه پورې او د لچسپ دی.

د دغه ډول کنترول ځانګړتیاوې دادی چې: دلته اصلي غږ چې اوریدل کیږي د ماشومانو دي خو کله-کله د ښوونکي لخوا هدایات (لارښوونې) هم اوریدل کیږي.

**ستایل او سزا ورکول**

ستایل: د ماشومانو په هڅو باندې باید اعتراف وشي. هڅه کول د بریالي کیدلو په پرتله ډېر مهم دی. خاصې ستاینې باید د رښتیانې ښه کوشش کولو په صورت کې وشي. اړینه نه ده چې د ماشوم هر کار وستایل شي. هڅوونه ډېره مهمه ده او دا د علاقې په ښودلو او همدارنګه په ستایلو حاصلیدای شي.

**سزا ورکول**

ماشومان هیڅلکه باید ونه وهل شي. وهل ماشوم ته ویره، تشدد او ځورول ور زده کوي. وهل هیڅکله په سلوک کې ښه والی نه راولي، بلکې کله-کله ماشومان شوخ کیږي، ترڅو چې خپله زړورتیا وښیې. ماشومان باید کله هم سپک (تحقیر) نه شي. که نه دا به هغوی د نورو بدو عملونو ( بد سلوک) خواته بوزي. هغه ماشومان چې بد سلوکي کوي، باید خبرې ورسره وشي. داخبره یقیني کړی چې دوی په خپلو اشتباهاتو باندې پوه شي او د خپل سلوک سمولو ته یې وهڅوئ. د ښوونکي او زده کوونکو په منځ کې ښه (دوستانه) اړیکې د ماشومانو د سلوک په اصلاح کې ډېر قوي عامل دی. ماشومان غواړي چې د ښوونکي قدر او غزت وکړي او هغه خوشحال کړي د چاه سره چې د دوی مینه ده.

دا دواړه اړین دي. زده کوونکي باید د ښوونکي سره مینه ولری او قدر یې وکړی او ښوونکی باید په دوی شفقت وکړي. یو له دې دوو نه یوازې کار نه ورکوي ، باید دواړه وي.

ماشومانو ته مسؤولیتونه ورکړی. بدسلوکي اکثراً د نورو د توجه جلبولو په غرض تر سره کیږي. اکثره ماشومان ستاینه غواړي نو کله هم چې هغوی یو ښه کار وکړی نو ستاینه یې وکړی. که چېرې یو ماشوم همیشه تنقید شي، نو هغه بیا د بدسلوکي ځانته د متوجه کولو یوازېنۍ لاره ګني.

**د جسماني سزا ممکنه بدیلونه**

څو کرښې د لیکلو، یا کاپي (نقل) کولو لپاره ورکړی، اضافي کار یا د ټولګي په پاکولو (صفایي) باندې یې وګماری. دتفریح په وخت کې ماشوم په ټولګي کې ایسار کړی. ( له دې فرصت څخه په ګټې اخیستنې له ماشوم سره خبرې وکړی).

د ټولګي (درس) څخه وروسته ماشوم په ټولګي کې وځنډوی ( هومره نه چې که هغه ته اوږد مزل په مخ کې وي (کور یې لرې وي) او یا هغه ته دیوه بل کوچني ماشوم کورته رسول ور په غاړه وي. ښوونکی باید له دې حالاتو څخه خبر وي).

که چیرې بدسلوکي دوامداره وي نو ماشوم سرښوونکی ته حواله کړی.

(سرښوونکی باید د داسې سرغړونکو ماشومانو د اصلاح کولو لپاره روزنیز کورسونه ووایي)

د بدسلوکي د عواملو د پیداکولو هڅه (کوشش) وکړي. اکثراً ماشومان په کورکې د ستونزو، خفګان او داسې نورو عواملو په وجه بدسلوکي کوي. په داسې مواردو کې شاید سزا ورکول مناسبه نه وي، ځکه په کړیدلو (ځوریدلو) باندې بې انصافې ورعلاوه کول (زیاتول) شاید د سمولو لاره نه وي.

## ځورول

دا یوه لویه ستونزه کیدی شي. د یوې مهمې عاجلې موضوع په توګه باید د هغه چاره وشي. کله هم یو یا یوه ډله ماشومان مه پریږدی چې نور ماشومان وډاروي او یا یې وځوروي. دا خبره ورته په صراحت ووایی چې د ښوونځي پالیسۍ (مقررات) دغسې ځورونې نه شي زغلی.

**د ټولګي ترتیب او تنظیمول**

ټولو ته څرګنده ده چې هر کار د خاص نظم او مساعدو شرایطو په موجودیت کې په ښه ډول پرمخ ځي ښوونه-او روزنه چې د انسانانو د ژوندانه په دوران کې د ارزښتناکو غوښتنو او مهمو ټولنیزو کارونو له جملې څخه منل شوې ده، چې په حتمي ډول ښه نظم او ترتیب ته اړتیا لري. د تدریس لپاره باید د ښوونکي له خوا په ټولګي کې په مطلوب ډول زمینه او امکان برابر شي. د ښوونې- روزنې د پروسې په وړاندې باید ستونزې او بندیزونه لري شي او بیله دې چې د زده کړې او روزنې عملیې ته څه زیان ورسیږي باید په مناسب ډول د

تدريس د پرمختګ لپاره تدريسي فضا برابره شي. د هرې اساسي موضوع په باب (ترتيب، نظم، اداره، ډسپلين، ستاينه اوهڅونه) د توان په اندازه بحث کيږي.

### 1- د ټولګي ترتيب او تنظيم

ترتيب او تنظيم په روزنېزه برخه کې شامليږي نه په تعليمي (تدريسي) برخه کې، ځکه د ټولګي ترتيب او تنظيم د تدريس لپاره تياروي. او يا په بل عبارت د ټولګي تنظيم او ترتيب د تدريس لپاره د زميني برابرول دي. يعنې داچې ښوونکی د درس له شروع څخه مخکې زده کوونکي او ټولګی د تدريس لپاره تياروي، ترڅو زده کړه او روزنه په سمه توګه جريان پيدا کړي.

د ټولګي ترتيب او تنظيم په ې برسيره چې د درس له اسانتيا سره مرسته کوي د زده کوونکو له زده کړې سره هم کومک کوي. نو ځکه لازمه ده چې ټولګي ته د داخليدو په وخت کې لاندي ټکي په پام کې وساتو:

ښوونکی بايد ټولګي ته د داخليدو په وخت کې لاندي ټکي په پام کي وساتي:

1. ښوونکي بايد ټولګي ته د داخليدو په وخت کي د سلام اچولو دود پر ځاي کړي.
2. په ټولګي کې بايد په خلاصه ټنډه او مناسب غږ خبرې وکړي.
3. ښوونکي بايد د ټولګي په منځ کې يوې بلې خوا ته وګرځي بيا په مناسب ځای کې ودريږي او له زده کوونکو څخه د حال پوښتنه وکړي.
4. کله چې يو زده کوونکی ناروغ يا معيوب وي، له هغه سره د مهرباني وشي او که ممکن وي هغوی د ادارې له خوا د تداوی لپاره معرفي شي.
5. ښوونکی بايد ټولګی منظم کړي، د ميزونو، چوکيو، درسي موادو، تورې تختې ترتيبول او ښودل.
6. د زده کوونکو د پاکی او نظافت ليدل او مهربانی سره هغوی ته توصيه کول.
7. د زده کوونکو د حاضرۍ نيول او د حاضرۍ د اهميت او د غيرحاضرۍ د بدو عواقبو په باره کې خبرې کول.

8. د زده کوونکو د کورنیو دندو څخه لیدنه او د غلطیو اصلاح کول.

9. د ټولګي د ترتیب او تنظیم د مهمو ټکو په باب په لاندې ډول بحث کیږي.

**سلام اچول**

1. سلام د لوي خداي کلام دی او د خبرو اترو دروازې خلاصوي او د ښوونکي او زده کوونکو په منځ کې اړیکې ټینګوي. څرنګه چې موږ مسلمانان یو نو ټولګي ته د ننوتو په وخت کې باید په خلاصه ټنډه او مناسب غږ سره (السلام علیکم وحمت الله وبرکاته) ووایی چې دا له یوه اړخه سنت طریقه ده او له بلې خوا د زده کوونکو په منځ کې د خوشحالی احساس را پیداکوي او د زده کړې، مینې او ښتینوالي زمینه برابروي.

**۲. روغبړ کول**

ددې لپاره چې د ښوونکي او زده کوونکو په منځ کې نږدې اړیکې پیدا شي اړینه ده چې ښوونکي د زده کوونکو له حال او احوال څخه خبر وي او د هغوی په غم او خوشحالی کې ځان شریک و ګڼي او دغه راز د زده کوونکو له ستونزو څخه ځان خبروي او په حل کې ورسره مرسته کوي، ترڅو د ستونزو شته والی د زده کړې لپاره خنډ ونه ګرځي. ښوونکی باید ددې لپاره ډیر وخت ضایع نکړي، بلکې هغه باید په عمومي توګه سره د زده کوونکو ظاهري وضع معلومه کړي او له حال نه یې پوښتنه وکړي.

**۳. نظافت**

د صفایي او پاکوالي لپاره ښوونکی باید د زده کوونکو د جامو، کالیو، ویښتانو، نوکانو، پښو.....او نور په پام کي ونیسي. د نظافت ګټې بیان کړي او دغه راز هغه ناروغۍ ورته بیان کړي چې له ناپاکۍ څخه را پیدا کیږي او هغو د مخنیوي لارې د توصیې په ډول وښیې. دغه راز د میز، چوکۍ د ښوونځي او ټولګي د دیوالونو ساتنې توصیه وکړي. ترڅو زده کوونکي د هغو په ساتنه کې کوښښ وکړی.که زده کوونکي ښکلې جامي اغوندي او له فیشنې وسایلو څخه کار اخلي باید ددې کار مخنیوی وشي او هغه کنترول شي او پخپله ښوونکی هم هغه په پام کي ولري.

**٤. حاضري**

په خپل وخت سره د زده کوونکو حاضري او په ښوونځي کې تنظیم ډیر اهمیت لري او ښوونکی باید د تعلیمي کال په پیل کې توضیح کړي چې بې ځایه غیرحاضري ونه کړي چې په درسونو کي د وروسته پاتې کیدو سبب

ګرځي اوهم کیدای شي چې په ازموینه کي منفي اغیزي ولري. حاضري باید د درس په شروع کې د ټولګي د نګران له خوا واخستل شي او داسې باید ونه شي چې یو څوک په دویم یا دریم ساعت کې راشي او بیا حاضر ونیول شي. دغه کار زده کوونکي بې مسؤلېته کوي او د زده کوونکو په منځ کې تضاد را پیدا کوي.

## ۲. د ټولګي فیزیکي تنظیم

ټولګي باید په دوو لحاظونو تنظیم شي:

الف: د ټولګي تنظیم د زده کوونکو د کېنیناستلو له اړخه.

ب: د ټولګي تظیم د موادو له اړخه

**الف: د ټولګي تنظیم د زده کوونکو د کېنیناستلو له مخې!**

کله چې درس ورکوی زده کوونکي په ټولګي کې څنګه کېنینوی؟ یا په بله ژبه ستاسې د درسي کوټې فزیکي وضعه څرنګه وي درسي کوټه څومره چې امکان ولري هغومره د زده کړې لپاره برابره کړای شي چې ترتیب او د زده کوونکو د کېنیناستلو ډول تنوع په تدریس او د زده کړې په عملیه باندې ډیره اغیزه لري. ښوونکی باید زده کوونکي د تدریس د میتود او د درس د عملي فعالیتونو په اساس او د هغه فعالیت سره سم تنظیم کړي. که زده کوونکي چوکۍ و نلري او ټولګی لوند وي نو ښوونکی د لاربښوونه وکړي چې زده کوونکی له ځان سره وړې توشکې راوړي، ترڅو دغه عوامل ددې سبب ونه ګرځي چې نورې جسماني ناروغۍ ورته پیداکړی. د تلو او راتلو په وخت کې خپل بوټونه په منظم ډول د ټولګي یوې خواته وکاږي.

هغه زده کوونکي چې لنډه ونه ولري د ټولګي په لومړي قطار کې ځای ورکړل شي او همدا ډول د زده کوونکو دلیدلو او اوریدلو حس هم په پام کی ونیول شي. د زده کوونکو د کېنیناستلو نظره په ټولګي کې بدلون د زده کوونکو د ځایونو د بدلون او تغیر سبب کیږي. که چیرې په عمومي ډول لایقه زده کوونکي د ټولګي په مخکې او تنبل زده کوونکي د ټولګي په پای کې کېنیني او ځایونه یې تل ثابت وي، دغه عمل ددې سبب کیدای شي چې د زده کوونکو په منځ کې یو ناسالم رقابت او تضاد را پیداشي. نو ځکه ښوونکی باید هڅه وکړي چې د ټولګي فزیکي جوړښت او د زده کوونکو د ناستې ځایونه بدل او تغیر کړي. دغه بدلونونه لاندې ګټې لري:

په ټولګي کې بدلون څه ګټې لري:

1. د زده کوونکو لپاره د په زړه پورې وي.
2. په کار او فعالیت کې یو ډول بدلون دی.
3. زده کوونکي درس ښه زده کوي.
4. زده کوونکي له هر وضعې او موقعیت سره عادت نیسي.
5. د هر میتود او درسي فعالیت لپاره زمینه برابروي.
6. د زده کوونکو اندیښنه ورک کیږي او له یو بل سره د همکارۍ روحیه پیدا کوي.

**ب.د ټولګي تنظیم د موادوله پلوه**

د ټولګي تنظیم د موادو له پلوه هم د زده کوونکو په زده کړه کې څرګنده اغیزه لري. ښوونکی باید چارتونه او انځورونه په ټولګي کې په منظم ډول نصب کړي چې ټول زده کوونکی له هغو څخه ګټه واخستی شي. که د ټولګي دیوالونه خام وي او اشکاستب نه اخلي ښوونکی کولاشي چې د ټولګي په څلورو کونجونو کې میخونه ټک وهي او تناب (نرۍ رسۍ) واچوي په دې ډول چارتونه او انځورونه په تناب کې بند کړي.

دغه مواد باید په تحمیلي ډول د زده کوونکو له خوا برابر نه شي. ښوونکی کولاي شي په خپل درسي ساعت کی د موادو د برابرولو لپاره ګروپي یا انفرادي کارونه سرته ورسوي او لاس ته راغلی نتیجه په ټولګي کې نصب کړي.

د مثال په ټوګه: د رسم په ساعت کی زده کوونکو ته ویل کیږي چې د پسرلي د موسم یو تصویر رسم کړي. په پاي کې ښوونکی کولاي شي ډېر ښه او څرګند انځورونه د ټولکي په دیوال باندې و ځړوي، او یا هر زده کوونکی ته وایې چې په یوه پاڼه یو توري ولیکي، هغه په تناب وځړوی او د موادو په څیر له هغه څخه ګټه واخلی.

د هغو مواد نصبول چې د زده کوونکو الفبا په ذریعه جوړ شوي وي د دوی د افتخار او د شخصیت خپریدو سبب ګرځي او له پخوا ډېر له درس سره مینه پیدا کوي. زده کوونکي او ښوونکی کولای شي ټولګی د هغو جنتری ګانو په انځورونو یا نورو انځورونو ښایسته کړي چې تاریخ یې تیر شوي وي.

يعنې ښوونکی باید هڅه وکړي چې ټولګی هم د کښیناستلو او هم د تزیینې موادو له پلوه ترتیب او تنظیم کړي. ځینې وختونه پخپله ښوونکی ددې باعث ګرځي چې ټولکی غیر منظم شي. د مثال په توګه هغه شاګردان چې تخته وويني او هره دقیقه له ځایه جګ شي او بل زده کوونکی ټیله کوي او شور ماشور جوړوي. او یا داچې ښوونکی د درس په جریان کی زده کوونکو ته وایي چې خپلې کتابچې و باسئ، ټول په دې کار مصروف شي او د درس له پیل کیدو څخه د مخه شاګردانو ته ووایي چې هر هغه څه چې د درس په جریان کی هغه ته ضرورت پیداکیږي راوباسي او په خپل مخ کې یې کیږدی. او کله چې په ټولګي کې شور جنګ، لاس اچول او یا بحث ګرم شي ښوونکی باید د زده نکوونکو ځایونه بدل کړي او بیا د هغه د علت پوښتنه وکړي او هغه حل او فصل کړي ترڅو د درس په جریان کی بندښت رانه شي. څو ستونزې د هغوی د حل لارو سره ذکر کیږي.

۳. د ټولګي د ستونزو حل:

یو شمیر ښوونکي په ټولګي کې له ځینو ستونزو سره مخ کیږي او باید هغه د مسلکي معلوماتو په واسطه یې حل کړي. دلته د ټولګي یو شمیر ستونزې د لا ډیرو مهارتونو زده کولو لپاره تر بحث لاندې نیسو.

په لومړي ټولکي کې لومړی ستونزه:

یو زده کوونکی د ټولګي په پای کې ناست دی او خوب وړی دی او خرهاری یې خیږي. ښوونکی پوهیږي چې دغه زده کوونکی له یو بې وزلې او غریبې کورنۍ څخه دی او له لرې ځایه ښوونځي ته راځی. په داسې حالت کی ښوونکی څنګه کولای شي په ټولګي کې د بې نظمی مخه ونیسي او نور زده کوونکی له خندا څخه منع کړي.

د پورتنی ستونزې حل:

زده کوونکی له خوبه را پا څو و او له ځایه یې جګو و او په مهربانه لهجه ورته وایو چې ولاړشي او مخ او لاس ومینځي. او بیا هغه په لومړی قطار کی کښینوو او هم هغه په درسي فعالیتونو کې زیات ورګډوو.هغو  زده کوونکو چې خندل یې توصیه کوو چې او که ذکر شوي شاګرد دغه عمل بیا تکرار کړي له پلار سره یې اړیکه نیسو ترڅو ددې علت پیدا شي او یوه چاره و سنجوو.

په دویم ټولګي کې دویمه ستونزه:

ښوونکی په ټولګي کی د درس په ورکولو مصروف دی. په دې وخت کې یو شاګرد له بل شاګرد سره لاس اچوي، شوخي کوي او درس ته یې پام نشته. ښوونکی کله چې دا حالت ویني ددې ستونزې د حل لپاره څه باید وکړي؟

د پورتنی ستونزې حل:

هغه زده کوونکی چې شوخی یې کوله د ټولګي مخې ته راغواړي او د دوی د شوخی علت له هغو څخه پوښتي. کله چې علت پیدا شو عادلانه فیصله کوي. هغه شاګرد چې اول یې لاس اچول پیل کړي وي په نرمه لهجه پوهوو ترڅو بیا په راتلونکی کې دغه کار ونکړي او بیا هغه په لومړي قطار کی کښینوو او په درسي فعالیتونو کی یې زیات مصروفوو. که دده دغه عمل بیا تکرار شي، د ادارې له خوا دده له کورنۍ او همځولو سره یې تماس نیسو ترڅو علت یې پیدا او ستونزه حل شي.

په پنځم ټولګي کی دریمه ستونزه:

ښوونکی غواړي د تعلیمي کال په پیل کې صنفي امتحان واخلي خو ټولګی دومره تنګ دی چې د چوکیو د لرې ایښودلو او د شاګردانو د لرې کښینونو امکان نشته. خو شاګردان له یوه بل څخه نقل کوي. ښوونکی څنګه کولای شي دغه ستونزه حل کړي او ازموینه واخلي؟

**د پورتنی ستونزې حل:**

ښوونکی صاحب باید پوښتنې په دو وګروپونو کې جوړې کړي.

(الف –ب) د هر ګروپ پوښتنې باید مختلفې، خو عادلانه وي یعنې د یوه ګروپ ستونزمنې او د بل هغه اسانه نه وي. زده کوونکي په منظم قطار کې کښینوی او هغوی د الف او ب په ګروپونو ویشی. په لومړي سرکې ښوونکي د الف ګروپ زده کوونکو ته پوښتنې ورکوي او ورته ووایي چې د پوښتنو پاڼې په بل مخ واړوي او بیا د ب ګروپ زده کوونکو ته پوښتنې وایي او بیا هدایت ورکوي چې پوښتنې حل کړي. که پوښتنې چاپې وي هر ګروپ ته هغه توزیع کوي ترڅو شاګردان ځوابونه ولیکي.



# درسي پلان

## د درسي واحد پلان او د هغه ډولونه

انسان یو هدفمند او ټولنیز موجودی. همیشه د لارو او طریقو په لټون کې دی او هغو خپلو مقاصدو ته د رسیدو لپاره لارې طرحه کوي ترڅو خپل موخه ته ورسیږي. دغه کار ته په حقیقت کې پلان وایې. هر انسان په ژوند کې ډول، ډول پلانونه لري چې د ژوند په اوږدو کې مطلب ته ورسیږي. د برعکس که چیرې د خپلې مرامنامې او کار د سر ته رسولو لپاره لازم تدبیرونه او د کار سمه سنجونه ونه شي، له یوه طرفه ممکن خپلو موخه ته لکه څرنګه چې غواړي ونه رسیږي او له بله اړخه امکان لري چې د کار په جریان کې له ډېرو ستونزو او سره مخ شي.

څرنګه چې موږ د ښوونې او روزنې په هکله خبرې کوو، څومره به ښه وي چې ښوونکی هم د خپلې موخې لپاره چې له زده کړې، تدریس او د هېواد د زامنو روزلو څخه عبارت ده، منظم درسي پلانونه ولري. له هر څه مخکې پلان تعریف وو.

### د پلان تعریف

پلان یوه فرانسوي کلمه ده په لغت کي تدبیر، سنجول، طرح کول، نقشه کول او د یوه کار سرته رسولو لپاره تصمیم نیولو ته وایي. او په اصطلاح کي پلان له هغې طرحې او ذهني نقشې څخه عبارت دی، چې د یوه کار د سرته رسولو لپاره د هغه فعالیتونه منظم کوي. یا په بل عبارت د موخه لرونکو منسجمو فعالیتونو د سر ته رسولو لپاره منظمې نقشې او طرحې ته پلان وایي. د ښوونې او روزنی فعالیتونه ډول، ډول او مختلف دي، ښوونکي چې ددغو فعالیتونو لارښوونکي او مسؤل دي، نو له ټولو نه مخکې لازمه ده چې د زده کړې او ودې ورکولو د عملیې او تدریس لپاره منظم پلان ولري، ترڅو د دندو په سر ته رسولو کې ټینګ او متین قدمونه واخلي چې له ګډوډی، بې ثباتی او تیت پرک حالت څخه په امن پاتې او بریالی شي. او د خپل درس د غوښتنې سره سمه نتیجه په لاس راوړي.

### د وخت له کبله د درسي پلان ډولونه

په عمومی توګه درسي پلان د وخت له کبله په درې ډوله دی:

1: د اوږدې مودې لپاره درسي پلان ( کلنی درسي پلان)

2: د منځنی مودې (وخت) درسي پلان ( موضوعی یا فصل وار درسي پلان)

3:د لنډه مودې لپاره درسي پلان ( درسي واحد یا ساعتوار پلان)

څرنګه چې پورته وویل شول چې ډیره مهمه او ضروری ده چې ښوونکي د درس ورکولو لپاره ساعت وار یا درسي واحد پلان ولري. نو له دې کبله لازمه ده چې په لومړی قدم کې په درسي واحد پلان باندې خبرې وکړو.

**درسي واحد پلان**

درسي پلان د ښوونکي یو ډول خاص، فردي او مسلکي مهارت دی او کولای شي، چې ددې مهارت په وسیله د یوه مهم او اغیزلرونکي محوري عنصر په توګه په تدریس کې ځینې ګټه واخلي او ښوونکي په دې باندې پوه وي چې درسي پلان د بدلون ځانګړتیا لري، نو له دې کبله ښوونکی کولای شي چې ډېره ښه نمونوي طرحه جوړه کړي. او دې ته یې پام وي چې درسي موخې او مقصدونه، د تدریس د طریقو څخه ګټه اخستنه، د پوښتنو تکنیکونه، د ټولګي تنظیم او درسي لوازم ( موادو) ، د زده کوونکو او خپل ځان د فعالیتونو د اجرا ارزونه او ټولو کلیدی مسئلو د پلان په منځ کې د خپل کار بنسټ وګرځوي. درسي پلان باید لنډ او پریکړی وي.

**د واحد درسي پلان تعریف**

واحد درسي پلان له یوې منظمې ذهني نقشې او طرحې څخه عبارت دی چې ښوونکي په هغه کې ټول هغه درسي فعالیتونه چې دی او زده کوونکي یې په همغه درس کې سرته رسوي، تدبېر، سنجولي او درج کړي. یا په بل عبارت: درسي پلان د هغه فعالیتونو د طرحه کولو، د وخت تقسیمولو او د لوازمو (موادو) برابرولو څخه عبارت دی،چې د زده کړې موخو لاس ته راوړلو لپاره جوړیږي. یعنې هغه وخت چې ښوونکی یوه موضوع د زده کوونکو لپاره تدریسوي د هغې د ټاکلو لپاره یوه سلسله فعالیتونه سنجوی او د هغوی د عملي کولو لپاره په نظر کې نیولی وخت ویشي او د ضرورت وړ مواد تیار وي. چې همدغه کار په حقیقت کې د ښوونکي پلان او یا د ښوونکي مخکنی تیاري ښيي.

**د درسي پلان د درلودلو څخه موخه څه شي ده؟**

۱. په موضوع باندې حاکمیت او د پیش بیني شویو پوښتنو په هکله د معلوماتو پیدا کول دي که چېرې ښوونکي په درس باندې حاکمیت ونه لري. او د متن په لوستلو کې غلطي ولري او یا د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب ونه

وايي، د زده کوونکو په وړادې خپل مقام او احترام له لاسه ورکوي او دده خبرې به په زده کوونکو کومه اغیزه ونه لري.

۲. د ښوونکي تیاری د محتوا، وخت، د لوازمو د ترتیبولو او لازمو طریقو له نظره منځ ته راځي. لکه څرنګه چې مخکې یادونه وشوه ښوونکي به د درس په موضوع په بشپړه توګه مسلط وي، او دا ورته معلوم وي چې څرنګه یوه موضوع تدریس کړي. کوم مواد او لوازم تیار کړي، ترڅو چې پوهې او مطلب ته ژر او اسانه ورسیږي او کومې مناسبې طریقې په کار واچوي چې زده کوونکي د فعالیت مرکز وګرځي. چې دغه کار ښوونکي له سرګردانی خلاصوي او درس ته یې تیاره وي.

۳. د درس موخې ته د رسیدو په صورت کې، ښوونکی د درس موضوع وایي او د هغه موخه ورته لیکي او هغه ته د رسیدو لپاره پورتني فعالیتونه سنجوي او پلان لیکي چې په دې ترتیب د درس موخې ته رسیدلی شي.

**د درسي واحد پلان خصوصیات**

۱. درسي پلان باید لنډ او ښکاره وي. نه داچې د لیکلو په وخت کې د ښوونکي زیات وخت ضایع کړی او ښوونکی د درس لپاره تیاري ونشي نیولای او له هغه څخه په مناسبه توګه کار وانه خلې. یا داچې د لیکلو څخه وروسته یو ستومانه پلان شي او نور ونشي کولای چې سرته یې ورسوي.

۲.طرح شوي پلان باید ښکاره وي، ځکه د پلان درلودل تنها د پلان طرح کول نه دي. بلکې د هغه څخه اغیزمنه ګټه اخیستل دي. که چیرې پلان وضاحت ونلري د هغه څخه د ګټه اخیستلو په وخت کې ښوونکی د ستونزو سر مخامخ کیږي او د پلان د اجزاوو په منځ کې اړیکي او سلسله ګډوډیږي او موخې ته نه رسیږي.

۳. د پلان د اجزاوو په منځ کې باید منطقي تسلسل وجود ولري یعنې تیر درس د نوي درس سره او نوی درس له تمرینو سره او لنډه داچې درس ترتیب وي.

٤. د موضوع ګانو د ښکاره کولو لپاره مثالونه راوړل شي، د ټولنیز ژوند او طبیعي پیښو سره دې اړیکه ورکړل شي. مثلاً که د ښوونکي د درس موضوع په عملي توګه په طبیعت کې مثال ونه لري نو باید تاثیرات یې په ټولنیز ژوند له عواملوسر ورکړي. یا که د درس موضوع څرخ وي ښوونکي کولای شي چې د کتاب

د متن څخه علاوه د کوهې څرخ، د بایسکل عراده د چاقو ګانو چړو او بیاتي د تیرولو څرخ او د نورو شیانو مثالونه راوړی. اما د مثالو د ویلو په وخت کې هم د زده کوونکو د پوهې سطحه په نظر کې ونیسې، ځکه مثالو نه د موضوع د روښانه کولو لپاره ویل کیږي نه د تردد دپیداکولو لپاره، که چیرې ښوونکي یو مثال راوړي وي او هغه مثال زده کوونکو لپاره واضح نه وي، برسیره پر دې چې زده کوونکي به په درس کې ستونزې لري د مثالونو په پوهولو کې به هم له ستونزو سره مخ شي، چې دا په خپل زات کې دوه عمده ستونزې شوې.

۵. یو ښه پلان باید بدلون منونکی وي، که چیرې ښوونکي دا درک کړي چې فعالیتونه لږ وو، زده کوونکي زیات تمرین ته ضرورت لري او یا فعالیتونه ډېر دي، زده کوونکو زده کړه نه ده کړې، کولای شي هغه ته بدلون ورکړې. یعنې ښوونکي د زده کوونکو د حالاتو په نظرکې نیولو سره په پلان کې لازم بدلونونه راوړي او د هغه سره سم د يې تطبیق کړي. مثلاً ښوونکي د تقسیم د عملیې د تدریس او آزموینې په خاطر پلان طرح کړي دی، هغه وخت چې په ټولګي کې له هغه څخه کار اخلي د یوه عدد تقسیم پر بل عدد باندې زده کوونکي ستونزې لري دلته د پلان بشپړ عملي کول صحیح نه وي، بلکې د زده کوونکو د ضرورت سره سم زیاتو تمریناتو ته ضرورت پیدا کیږي. ترڅو د تقسیم په عملیه باندې زده کوونکي پوره پوه شي او ښوونکی کولای شي چې د پلان پاتې برخه بله ورځ عملي کړي.

٦. یو ښه درسي پلان د ښکاره موخو، د ډول، ډول فعالیتونو، د فعاله طریقو، د وخت دبرابر ویش، د درسي لوازمو (موادو) د ارزونې مناسبې لارې او د زده کوونکو د یادګیرنې لرونکي وي.

**د درسي واحد پلان ګټې**

۱. د درسي موضوع محتویات، مواد او مطالب پر صحیح او ډېره ښه توګه تنظیم کړي.

۲. د مناسبو میتودونو ټاکل پر زده کړه کې مرسته کوي.

۳. په درسي فعالیتونو کې د زیاتو زده کوونکو برخې اخیستو ته زمینه برابره وي.

٤. د درسي موادو په ټاکلو او برابرولو کې ښوونکي مرستې ته مجبور وي.

۵. د ښوونکي سره د درسي موادو په مناسب وخت کې د استعمالولو مرسته کوي، او د وخت د ضایع کیدو کې څخه مخنوي کوي.

٦. ښوونکي د درسي پلان په لرلو سره ډاډه او آرام وي او د زده کوونکو لپاره هم اغيزمن او ګټور تماميږي.

٧. د درسي پلان درلودل د ښوونکي او زده کوونکي سره مرسته کوي ترڅو خپل درس د زړه له کومې، په ځانګړې پاملرنه وګوري او په پرلپسې توګه يې سرته ورسوي.

٨. د درس پلان لرل د ښوونکي سره مرسته کوي چې ژر موخې ته ورسيږي.

٩. په هميشنۍ توګه د درس ورځني پلان جوړول، ښوونکی په دې باندې قادروي چې په درسي نصاب او پروګرام کې ستونزې او کمزورتياوې را په ګوته کړي او خپلې د ارزښت وړ نظريې د هغوی د حل د لارو چارو د پيدا کولو په اړه اړوند مرجع ته د همکارۍ له مخې وړاندې کړي.

١٠. د درسي پلان جوړول به د هميشه لپاره د ښوونکو سره مرسته وکړي ترڅو د تدريس په برخه کې اغيزمن او ګټور ابتکارات منځ ته راوړي.

### د درسي واحد پلان جوړول

د درسي واحد پلان په جوړلوکې اساسې اړيکې او نکتې:

ښوونکي د درسي واحد پلان د جوړولو څخه مخکې بايد لاندې ټکي په پام کې ولري:

1. د لوست موخه( مقصد يا مطلب)

ښوونکی بايد پوه شي چې درس ورکولو ته چيرې ځې؟ د موخې په لور يا کوم بل خوا؟

ډېر ښوونکي درسي پلان په لنډ و او يا عامو جملو شروع کوي چې د لوست مطلب يا محتوا بيانوي او بيا خاص موضوعات او يا عنوانونه لست کوي. د هغه له مخې د خپل درس مقصدونه ليکې. مګر ښوونکي او زده کوونکي دواړه هغه وخت په اغيزمنه توګه موخې ته رسيږي چې د هغه شي اجرا کول چې ښوونکي يې د درس په اخير کې د زده کوونکو څخه هيله لري. په عملي توګه سرته ورسولای شي.

2. د زده کوونکي د پوهې د سطحې يا موقف ټاکل:

که چيرې ښوونکي د زده کوونکو سره مخکې کار نوي کړي. نو لازمه ده چې د هغوی د پوهې اندازه د غيررسمې ازموينې يعنې ارزونې په وسيله معلومه کړي. او يو پوه او تجربه کاره ښوونکی دغه کار کوي،

ترڅو پوه شي، چې د زده کوونکي د پوهې دلوړوالې سطحه تر کومه حده پورې ده او درس له کومه ځایه شروع کړي.

3. د درسي طرزالعمل تدابیر او د هغوی د میتودونو ټاکل:

مخکنی سنجش ښوونکي ته دا فرصت ورکوي چې میتودونه، طریقې اومناسب درسي مواد و ټاکي او د هرې درسي موضوع لپاره د کلني او فصلوار پلان د درسي ساعت لپاره یې د تدریس ډول ډول میتودونه ټاکلې وي.

4. ددې لپاره چې معلوم شي چې ښوونکي او زده کوونکي دواړه درسي موخه ته رسیدلي یا خیر؟ لازمه ده چې د هر ډول درسي پلان تدابیر او تدارکات موجود وي، چې موخې ته د رسیدو حد او اندازه د هغې په وسیله وڅېړلی شي. د درس دغه برخه د ښوونکي د درسي پلان د طرح او ډیزاین په شمول د زده کوونکو د فعالیتو او کړنو څېړنه کوي.

## د درسي پلان مرحلې

یو درسي پلان د لاندې مرحلو درلودونکی وي.

1. سریزه او تیاري.
2. د نوي درس وده او وړاندېز.
3. د درس پای.

د پلان د غوره اجزاو په نظر کې نیولو سره، هر یوه مرحله په لاندې توګه په ډاګه کیږي.

**۱. موخه**

د یوه پلان ښه والی دیوه ښه موخه لرل دي، که چیرې زمونږ موخه د زده کړې لوړه سطحه وي یعنې په هغه کې فعالیتونه لکه: په ګوته کول، مقایسه کول، بیانول، نوم اخیستل، تحلیل کول، تجزیه کول، جمله جوړول، ........ وي. زده کوونکي په همغه اندازه زده کړه کوي، نو له دې کبله باید کوښښ وکړو چې ښه او مناسبه موخه نظر د درس موضوع ته په پلان کې ځای ورکړو ترڅو د زده کوونکو د ښې او زیاتې زده کړې سبب وګرځي او د دوی دا ستعدادونو دپاره زمینه برابره کړي.

۲. ښوونکي باید کوښښ وکړي، چې د درسي موادو د پلان په وخت کې د موضوع سره سم مخکې تیار او له هغه څخه ګټه اخیستنه یې ازمویلي وي. ترڅو د کار په جریان کې د ستونزو سره مخ نه شي. ممکن ځینې مواد لکه د تصویر کښل په همغه ساعت کې سرته ورسیږي، مګر ښوونکی باید مخکې د نوي درس له شروع څخه اختصاص ورکړی وي.

۳. وخت

ښوونکی باید د درسي ساعت په نظر کې نیولو د زده کوونکو پوهې د سطحې سره سم د درس محتوا د پاره وخت په پلان کې ویشلی وي او ډېر وخت باید د نوي درس د وړاندې کولو په غرض مصرف کړی شي.

٤. د تیاری مرحله (مقدمه)

د درسي واحد پلان په دغه برخه کې د سلام اچول، پوښتنې کول، د نظافت لیدل، حاضری اخیستل، د کورنۍ دندې لیدلو او د تیر درس ارزونه او دانګیزې پیداکول شامل دي. څرنګه چې پورتنی موضوعګانې د ښوونکو د عادت ګرځیدلي او همیشه پر هغه عمل کوي د هغه ذکر کول په درسي پلان کې لازم نه دي.

کورنۍ دنده: هر ورځ او په هره موضوع کې زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکول سترې کوونکې ده او هم یې ارزښت کمیږي. ښوونکی باید په نظر کې ولري چې کومه موضوع زیات مشق او تمرین ته ضرورت لري، ترڅو زده کوونکي پر هغه زیات کار وکړي او پرې پوه شي.

د کورنۍ دندې ورکولو څخه علاوه دکورنۍ دندې لیدل هم ډېر مهم دی، ښوونکي باید د ټولو زده کوونکو کورنۍ دندې له نظره تیره کړي. که چیرې پوښتنې د حل وړ وي، نو یو زده کوونکی د پورته شي څو پوښتنه په تخته حل کړي او نور دې اصلاح کړي که په جمله کې د لغات استعمالول وي، یو یو زده کوونکی دې خپله جمله ووایي او یا دې پرتخته ولیکي، ښوونکی هغه وخت چې کورنۍ دنده ورکوي د هغو د اصلاح طریقې ته هم په پلان کې ځای ورکړي.

د تیر درس ارزونه:

هغه پوښتنې چې د تیر درس کلیدي نکتې پکښې شاملې وې او باید زده کوونکي هغه زده کړي. د تیر درس د ارزونې تر عنوان لاندې دې په پلان ځای ورکړی شي. ښوونکي کولای شي چې د مختلفو طریقو لکه پوښتنه او ځواب مسابقه، ګروپي کار، جوړه یې کار او داسې نور د تیر درس د ارزونې په توګه ګټه واخلي.

دانګیزې پیدایښت:

د زده کوونکو تیارول نوي درس ته د درس د عنوان د پیدا کولو سره، ښوونکي د یو رسم په ښوودلو، لنډې کیسې په ویلو، د ځو پوپښتنو په طرحه کولو .... په وسیله د درس عنوان له زده کوونکو څخه په لاس راوړي او ښوونکی باید هغه ته په خپل پلان کې ځای ورکړي. ترڅو د کار د اجرا په وخت کې د ستونزو سره مخامخ نه شي.

۵. دغه د پلان ډېره غوره برخه ده چې د درس عنوان معرفي کوي او نوی درس پیل کیږي او ښوونکی درس له هغې برخې څخه چې زده کوونکي پرې پوهیږي په هغه لور بیایې چې نه پوهیږي او ځینې نکتې چې زده کونکي پر پوه دي، ضروري نلري چې پر هغو باندې زیات ټنګار وشي او ښوونکي خپل زیات وخت د پلان په هغه برخه کې ولګوي چې درسي میتودونه پکې وي، ترڅو موخې ته ورسیږي. او ښوونکی باید هغه په پلان کې په ډاګه کړي.

٦. د درس ختم (درس تړل):

د پلان په دې برخه کې د نوي درس لنډول او منسجم کول، د نوي درس ارزونه د نوي درس د لاښه کولو لپاره تمرینونه او د کورنی دندې ورکول شامل دي. څرنګه چې د زده کړې لپاره په یوه درسي ساعت کې  دیوې موضوع ډیر مطالب تر بحث لاندې نیول کیږي او له مختلفو میتودونو څخه کار اخیستل کیږي، نو اړینه ده چې ښوونکی د درس کلیدي ټکي په لنډیز کې ووایې او که چیرې د متن او یا شعر ویل وې او ښوونکي په دې یوه شي چې زیات وخت نیسي، نو یوازې هغه برخه دې ولوستلی شي چې زده کوونکي ستونزې پکښې لري او ښوونکی نوی درس باید یو اړخیز ونه ارزوي، بلکې ډول ډول تمرینونه باید تیار کړي، چې له یو اړخیز حالت څخه درس راوباسي. زده کوونکی د فعالیت مرکز وګرځول شي ترڅو درس یې په مغزوکې ښه کیښني.

۷. ضروري او مهم یادداښتونه:

دغه برخه چې د پلان له چوکاټه خارجه ده. ښوونکي هغه تغيېرات چې په تدريس کې راولې د دليل په ذکرکولو سره يې ليکې ترڅو وروستنې درسونه د هغو تغيراتو په نظر کې نيولو سره پلان کړي.
مثلاً د محتوا لپاره د کافي وخت نه لرل، د فعاليت او موادو اغيزې نه لرل،...... بالاخره ټولې (+) او (-) نظر يوه د نه لرلو په صورت کې په هغه کښې ليکي او وروسته، نظريې او وړانديزونه په وروستې پلان کې په نظر کې نيسې. ښه او اغيزناک پلان جوړه وي او د زده کړې د موخو د لاس ته راوړلو لپاره کوښښ کوي. د درسي پلانو د چوکاټ نمونې ډيرې زياتې دي. او هر ښوونکي د خپلې غوښتنې سره، سم درسي پلان په يوه مناسب چوکاټ کې ترتيب وی.

# د درسي پلان نمونه

د ښوونکي نوم:　　　　　　　　موضوع:

مضمون:　　　　　　　　نیټه:

ټولګی:　　　　　　　　ښوونځی:

موخې:

| وخت | محتوا | فعالیتونه او میتودونه | مواد |
|---|---|---|---|
| | ۱. سریزه او تیاري:<br>▪ د ټولګي ترتیب او تنظیم<br>▪ د تیر درس ارزونه<br>▪ د انګیزې پیدا کول<br>۲. د نوي درس وړاندې کول او وده :<br>▪ د نوي درس عنوان معرفي کول.<br>▪ د ښوونکي او زده کوونکو فعالیتونه<br>▪ په درس کې د ډول، ډول میتودو څخه کار اخیستل.<br>۳. د درس پای.<br>▪ د درس پای او لنډیز.<br>▪ د نوي درس ارزونه<br>▪ د کورنۍ دندې ورکول | | |

مهمې او ضروري یادوونې:

- ارزونه:
- تبصره:

## څرنګه کولای شو چې د یوه پلان د تاثیراتو ارزونه وکړو؟

د پلان لیکل او ترتیبول سخت کارنه دی. ممکن لیکلو په وخت کې، زیات وخت ونیسي. او د وخت په تیریدو او د ښوونکي په کوښښ سره په لږ وخت کې کولای شو چې پلان جوړ کړي، د پلان جوړول د ښوونکي دنده ده او دیوه اغیزمن پلان طرح د ښوونکي غوره مهارت دی. یو ښه او مؤثر پلان هغه دی چې د زده کوونکو د ښې زده کړې او یادولو سبب شي. ډېر ښوونکي د پلان په جوړولو کې ستونزې لري، ځینې یې شته چې ډېر پلان جوړوي، خو په عملي کولو کې یې بریالی نه وي. ښوونکی باید ددې توان ولري او د خپل ځان، ارزونه وکړي چې آیا په پلان کې مشکلات لري او که نه او په عملي کولو کې یې کومو وړتیا ته اړتیا شته.

نو له دې کبله پلان هغه وخت اغیزلرونکی دی، چې د زده کوونکو د یادولو موضوع په کې طرح وي. زموږ ټینګار هم د پلان په تفصیل والي کې نه؛ بلکې د زده کوونکو په زده کړه د هغه د اغیزو ارزونه ده. نو له دې کبله د ښوونکې بریالیتوب د پلان په طرحه او د پلان په ارزونه پورې تړلی دی.

### د پلان د عملي کولو وروسته مرحله

د پلان دتطبیق څخه وروسته، ښوونکي باید د خپل پلان ارزونه وکړي چې:

1. په څه ډول مې فعالیت سرته ورساوه؟
2. څومره زده کوونکو په کې برخه اخیستې وه؟
3. څومره زده کوونکو پوښتنو ته ځواب ووایه؟
4. څومره زده کوونکو پوښتنې وکړې؟
5. دغه فعالیت څومره وخت ونیوه؟
6. آیا دټاکلي وخت څخه کم او یا زیات وخت یې ونیو؟
7. تدریس څومره مؤفق وه؟
8. آیا د ټولګي فزیکي چاپیریال د فعالیت لپاره برابر وه؟
9. که چیرې د کومې ستونزې سره مخامخ شي په راتلونکې کې هغه څرنګه تنظیم کړي؟

پوښتنې:

1. د درسي پلان اساسي مرتبې او نکتې کومې دي؟
2. د زده کوونکو د پوهې د سطحې د تشخيص کولو لپاره ولې پلان ضروري دی؟
3. د درسي پلان د مرحلو څخه نوم واخلي؟
4. د درس دختمدو په وخت کې کوم شيان ضروري دي چې سر ته ورسيږي؟
5. د درسي پلان تاثيرات څرنګه ارزولی شو؟

د ښوونکو لپاره وړانديزونه:

ښوونکي د درسي پلان د ترتيب کولو څخه مخکې بايد فکر وکړي چې:

زما د درس موضع څه شي ده؟ زما د درس موخه به څه شي وي؟ زما د زده کوونکو دپوهې سطحه په کومه اندازه ده؟ د کوم ميتودونه او کوم مواد په وسيله کولای شو چې د درس موخه ته ورسيږو. څرنګه زده کوونکي ارزيابي کړم چې موخه ترلاسه شوې ده او که نه؟. همدارنګه د پلان په ترتيبولو کې د پلان ټولې اجزا وي او مرحلې په نظر کې ونيسي او خپل پلان تيار کړي. او د عملي کولو څخه وروسته هغه ارزيابي کړي. ترڅو په راتلونکي کې يې ښه پلان کړای شي.

## عمومي پلان (کلنی پلان)

لکه څرنګه چې پوهيږو موخې ته درسيد او د فعاليتونو د سرته رسولو لپاره پلان ضروري دی داچې موږ او تاسو ټول ښوونکي يو او د درس ورکولو مهمه دنده په غاړه لرو، نو له دې کبله د پلان تيارول اړين دی او زموږ سره د تدريسې دندو په اجرا کولوکې مرسته کوي.

لکه څرنګه چې مخکې هم وويل شول چې درسي پلان د وخت له نظره پر درې ډوله دی:

1. درسي واحد پلان يا ساعتواره يا ورځنی پلان.
2. درسي فصلواره يا مياشتنی پلان.
3. عمومي پلان يا کلنی پلان.

د درسي واحد پلان يا ساعتواره پلان په هکله مخکې بحث وشو دلته غواړو چې عمومي يا سالانه پلان په لاندې توگه بحث وکړو:

**د کلنی (عمومي) پلان تعريف**

عمومي پلان يا درسي کلنی پلان له هغو عمومي مفاهيمو د طرحو او نقشوڅخه عبارت دی چې ښوونکی په هغه کې خپل راتلونکي فعاليت درج او د تعليمي کال په جريان کې د هغوی سره مطابق ديوه مضمون په تدريس او تعليمي نصاب د پروگرام په سرته رسولو کې گټه اخلي. يا عمومي پلان له هغې طرحې او ډيزاين څخه عبارت دی، چې ښوونکي د زده کړې موخې ته رسوي. نو ويلای شو چې په کلني تعليمي پلان ددې لپاره جوړيږي چې د ټولو درسي موضوعاتو د ستونزو اندازه ترلاسه شي، عمده مطالب تشخيص او تنظيم شي او نهايتاً په عملي کولو سره يې زده کړه يزې موخې ترلاسه شي.

**د عمومي (کلنی) پلان جوړول**

کلنی درسي پلان د تعليمي کال د پيل د لومړيو ورځو په پيل کې د درسي ساعتونو او دکتاب د حجم په نظر کې نيولو سره د ښوونکي په وسيله جوړيږي، چې په هغه کې د درس ورکولو ټول اغيزلرونکو امکاناتو، د درسي ساعتونو، اونيو، او د رخصتيو او ازموينو ورځو ويش او د ټولگي ټولې کړنې سنجش او اندازه کيږي.
همدا ډول له ښوونکي سره د نورو پلانونو په برابرولو کې مرسته کوي. يعنې په لومړي قدم کې يو کلنی درسي پلان جوړشي، وروسته فصلوار درسي پلان او ددې دوه پلانونو په وسيله کولای شي چې واحد درسي پلان (ورځينی يا ساعتوار) تيار کړو.

**د کلنی درسي پلان د جوړولو گټې**

1. د درسي پروگرام په تناسب د وخت له نظره د موضوعاتو ويش.
2. د اوږدې مودې د تدريس انسجام او ويشل.
3. د درسي موادو د برابرولو لپاره وړاندوينه او د تعليمي کال په اوږدو کې د زده کړې او درسي موادو او نورو سرچينو پيداکول.
4. د موضوعاتو او درسي مطالبو د اړيکي له نظره د تدريس د اغيزمنو او ښو لارو پيداکول او د مناسبو طريقو په کاروړل.
5. د ښوونکي لپاره د کال په اوږدوکې مناسب درسي طرزالعملونه په ډاگه کيږي.

6. د ودې او زده کړې ډاډمنې او منظمې پروسې ساتل چې د زده کوونکو د هڅونې سبب شي او د زده کونکو له سترتیا څخه مخنیوی وکړي.

7. له ښوونکي سره مرسته کوي چې د ګډوډۍ، بې ثباتۍ او د موضوعاتو د ګډوډولو څخه په امان وي.

8. د ښوونکي سره د پروګرام په سرته رسولو او عملي کولو کې مرسته کوي چې تعلیمي نصاب یې بشپړ شي.

9. د ښوونکي او زده کونکو سره د تعلیمي نصاب د موخو د لاسته راوړلو په برخه کې په ښه وجه مرسته کوي.

10. بلاخره په راتلونکي کې د پلان جوړونې سیستم ته د ښې وده لپاره یو بنسټ جوړوي.

د کلنی درسي پلان په جوړولو کې اساسي ټکي:

ښوونکي د کلنی درسي پلان په جوړولوکې دا لاندې نکتې په نظر کې ولری:

1. میاشتې او د تعلیمي کال ورځې: ښوونکي د جنتری له مخې کولای شي معلوم کړي چې یو تعلیمي کال څو میاشتې او څو ورځې کیږي.

2. په تعلیمي کال کې د رخصتی ورځې: چې د جمعې ورځې، د آزموینو ورځې، د ګرمۍ او سړې هوا په خاطر د رخصتیو ورځې، مریضی او د ښوونکي د قانوني رخصتیو د ورځو څخه عبارت دی.

3. د تعلیمي کال درسي ورځې ښوونکي باید دا په ډاګه کړي چې یو درسي تعلیمي کال څو ورځې او څو اونۍ کیږي.

4. ټولګي، مضمون او د کتاب مخونه: د کتاب مخونه چې په مربوطه ټولګي کې تدریس کیږي په نظر کې ونیول شي.

5. په یو درسي ساعت کې د درس حجم: ښوونکی دا باید پیداکړي چې پر یوه درسي ساعت کې په کومه اندازه تدریس وکړي.

6. داونۍ درسي مهالويش: د مهالويش سره سم په يوه اونۍ کې د مضمون د درسي ساعتونو شمير.

7. د تعليمات نامې مقررات: په سړو او نور سميو کې د تعليمي کال پيل د تعلميات نامې سره سم په نظر کې وينول شي. او دا بايد وويل شي چې د تيرو کالونو په اوږدو کې تعليمات نامه د تغير په حالت کې وه او په راتلونکي کې هم کيداى شي بدلون وکړي. د تعليمي کال د پيل، ختم او اموزينې د هغه وخت د مقرراتو سره په کلنۍ درسي پلان کې په نظر کې ونيول شي.

8. د کتاب د هر فصل د موضوع د محتوا د سختوالي او اسانتيا درجه بايد تشخيص او وټاکل شي.

9. د زده کوونکو پوهې د سطحې لوړوالى: که چيرې موضوع ډېر سخته وي د زده کوونکو د سويې سره سم دې زيات وخت ورکړل شي او که چيرې د زده کوونکو لپاره موضع اسانه وي نو کم وخت دې ورکړل شي.

10. د موضوعاتو اړيکې د يوه او بل سره: ښوونکي بايد په دې پوه وي چې د کتاب موضوعات د محتوا له مخې څه اړيکه سره لري، د زده کوونکو او د زده کړې لپاره د موضوعات تسلسل ګټور دى. ښوونکي د پلان د ترتيب کولو څخه مخکې ددې مطالبو د تشخيص لپاره بايد يو ځل کتاب وګوري او د کتاب موضوعات او عنوان د پورتنيو مطلبونو سره سم يادداښت کړي ترڅو وکولاى شي، چې د کومو موضوعاتو لپاره ډېر فعاليتونه او تمرينات ضروري دي او نور زيات وخت ته ضرورت لري، نو له دې کبله ښوونکى بايد په لمړى قدم کې د کلنۍ درسي پلان د جوړولو، د ورځو او درسي ساعتو د ټاکلو د جنترۍ څخه په ګټه اخيستو سره د عمومي رخصتيو، د جمعې ورځې، د امتحان ورځې په نظر کې ونيسي او لاندې جدول دى ترتيب کړي.

د مثال په توګه د ریاضي د لومړي ټولګي مضمون په نظر کې ونیسو چې په اونۍ کې (5) درسي ساعته درس ویل کیږي.

ورځې او مهم ټکي د عمومي پلان د جوړولو څخه مخ کې باید په نظر کې ونیول شي.

| ګڼه | میاشت | ورځې | د عمومي رخصتیو ورځې | د جمعې ورځې | د ازموینې ورځې | د ګرمۍ د رخصتیو ورځې | د ښوونکي د مریضۍ او رخصتیو ورځې | د درس ورځې | د اونیو مجموعه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ١ | وری | ٣١ | ٢ | ٥ | ٠ | ٠ | ٠ | ٢٤ | د درسي ساعتونو مجموعه ٢٩ ×٥ دیو اونۍ ساعتونه = 145 +3= 148 |
| ٢ | غویی | ٣١ | ٢ | ٤ | ٠ | ٠ | ١ | ٢٣ | |
| ٣ | غبرګولی | ٣١ | ٢ | ٥ | ٠ | ٠ | ٢ | ٢٢ | |
| ٤ | چنګاښ | ٣١ | ٠ | ٤ | ١٠ | ٠ | ٢ | ١٥ | د کتاب د مخونو شمیر = ٣٤ مخه کیږي |
| ٥ | زمری | ٣١ | ١ | ٤ | ٠ | ١٠ | ٠ | ١٦ | |
| ٦ | وری | ٣١ | ٠ | ٥ | ٠ | ٠ | ٢ | ٢٤ | |
| ٧ | تله | ٣١ | ١ | ٤ | ٠ | ٠ | ١ | ٢٤ | هرمخ په څو درسي ساعته کې تدریس کیږي ١٤٨÷ ٣٤= ٣.٤ درسي ساعت |
| ٨ | لړم | ٣٠ | ١ | ٤ | ٠ | ٠ | ١ | ٢٤ | |
| ٩ | لیندۍ | ١٥ | ٠ | ٢ | ١٠ | ٠ | ٠ | ٣ | |
| ټول | ٩میاشتې | ٢٦١ | ٩ | 37 | ٢٠ | ١٠ | ٩ | ١٧٦ | |

ښوونکي کولای شي چې د پورته جدول په لاس ته راوړلو سره چې پر هغه کې د درسي ساعتو شمیر، د کتاب نمونه په ډاګه شوې ده، د پورته عواملو په نظر کې نیولو سره د کتاب اړوند درسونه وګوري او د هغه عنوانونه له ځان سره ولیکې، د سختوالې او اسانۍ درجه یې د کلیدي مطالبو له مخې او د ټاکلو موضوعګانو په اساس وټاکې. وروسته له هغه چې ټول موضوعات کاملاً تشخیص شول، نو د تعلیمي کال ټول درسي ساعتونه او هم د یوې میاشتې د درسي ساعتونه تقسیم کړي او په یوه جدول (چوکاټ) کې د ولیکي او په دې ترتیب کلنی او میاشتنې پلان تیاریږي. دکلني پلان د جدول ډول-ډول شکلونه او نمونې شتون لري، ښوونکي کولای شي چې د زړه له غوښتنې سره سم هغه داسې ترتیب کړي چې پورتني مطلبونه په هغه کې ځای کړي موږ یوازې د دوه جدولو نمونې د موضوع د روښانه کولو لپاره ذکر کوو. ښوونکي کولای شي چې له هغو څخه ګټه واخلي.

دالف نمونه:

دکلنی پلان عمومی جدول: ( ) مضمون ( ) تولګی ( ): تعلیمی کال

| ګڼه | دکتاب موضوعات | درجه مشکل بودن | د کتاب د صفحی نمبر | د درسی ساعتونو تعداد | میاشت | ملاحظات |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | | |

د ب نمونه:

د کلنی پلان عمومی جدول: ( ) مضمون ( ) **تولګی** ( ): تعلیمی کال

| میاشتی | | حمل | | | | ثور | | | | جوزا | | | | سرطان | | | | اسد | | | | سنبله | | | | میزان | | | | عقرب | | | | قوس | | | | د ساعتونو مجموعه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هفتی / تاریخ او ساعتونه | | 1 | 2 | 3 | 4 | 1 | 2 | 3 | 4 | 1 | 2 | 3 | 4 | 1 | 2 | 3 | 4 | 1 | 2 | 3 | 4 | 1 | 2 | 3 | 4 | 1 | 2 | 3 | 4 | 1 | 2 | 3 | 4 | 1 | 2 | 3 | 4 | |
| یکشنبه | تاریخ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| | ساعتونه | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| دوشنبه | تاریخ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| | ساعتونه | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| سه شنبه | تاریخ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| | ساعتونه | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| چهار شنبه | تاریخ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| | ساعتونه | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| پنجشنبه | تاریخ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| | ساعتونه | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| مجموعه | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |

پوښتنې:

1) درسي پلان په څو ډوله دی؟
2) کلنی درسي پلان تعریف کړی؟
3) د عمومي درسي پلان ګټې ووایاست؟
4) یو کلن درسي پلان د جوړولو په وخت کې کوم اساسې ټکي باید په پام کې ولرو؟

دښوونکي لپاره وړاندېزونه:

ښوونکي کولای شي چې الف او ب د نمونوي جدولونو په مرسته خپل عمومي درسي پلان په مشرح توګه د درس او درسي ساعتونو سره سم ترتیب کړي. وروسته له هغه چې درسي کلنی پلان یې ترتیب کړ، کولای شي چې په ډېرې اسانی سره ساعت واره درسي پلان د هغه په اساس جوړ کړي ځکه په هغه کې د درس موضوع او د درسي ساعتونو شمیر مشخص وي او ښوونکی کولای شي چې پر ډاډه زړه د هر درس کار او فعالیت د لاښه والې لپاره زیات مشق او تمرین ته ضرورت لري د خپلو درسي ساعتو په اساس تیار کړي. باید یادونه وکړو، چې که چیرې ښوونکي په خپلو کې مشورې سره وکړي، نو دغه کار به په مختلفو ټولګیو د ښوونځي په سطح د کار او فعالیتونو د همغږي کیدو سبب وګرځي. همدارنګه ښوونکي د مختلفو مضامینو د کار او فعالیت په برخه کې کولای شي چې د درسي چارو په هکله مشترکه وجه منځ ته راوړي او زده کوونکي به د مختلفو مضامینو په منځ کې اړیکې په خپله احساس کړای شي

# ارزونه او د هغې مختلف اړخونه

ارزونه سنجش او اندازه کولو ته وايي. په ښوونه او روزنه کې ارزونه په عمومي ډول دا معنی لري چې پوه شو چې زده کوونکو مو مطلوبه زده کړه کړېده او که نه؟ په مروج تدريس کې ښوونکي ددې لپاره ارزونه کوي ترڅو پيدا کړي چې زده کوونکو څه زده کړي دي او کامياب او ناکام ورته معلوم شي او بس. معمولاً امتحان د نهايي ارزونې يوه وسيله بلل کيږي. په معمولې ډول زده کړه د ښوونکي لخوا د تدريس په نتيجه کې تر سره کيږي (البته په دغه صورت کې تدريس د پوهې د انتقال په معنی نه، بلکې د زده کړې لپاره اسانتيا د برابرولو په معنا دی)، نو د ښوونکي په ارزونه کې بايد هغه ټول عوامل چې په زده کړه باندې اغيز لري، شامل وي. نو ځکه د ارزونې عمده موخه داوي چې پوه شو، چې ټولو زده کوونکو مو زده کړ کړې ده او که نه. له دې امله ارزونه بايد دوامداره پروسه وي او د زده کوونکو د زده کړې لاسته راوړلو برسيره د تدريس مختلف اړخونه، په زده کړه اغيزمن عوامل او په زده کوونکي او ټولګي پورې نور اړوند اړخونه هم بايد کله-کله وارزول شي.

په دې لحاظ ښوونکي بايد د لاندې مواردو ارزونه وکړي:

1. د تدريس لپاره د ټاکل شوې موضوع ارزونه: ولې دغه درس ورکوم؟ ايا زده کوونکي يې زده کړې ته تيار دي؟ او نور.

2. د زده کوونکو د زده کړې لاسته راوړنې: د هر درس په پاي کې ښوونکي د درس د موخې سره سم دا پيدا کوي چې ټاکل شوې موخې لاسته راغلي دي او که نه؟

3. د تدريس د ميتودونو ارزونه: ولې ځينو زده کوونکو زده کړه وکړه او نورو ونه کړه؟ ايا په اسانه يې زده کړه؟ په بله کومه طريقه به مې په ښه او اسانه ډول زده کوونکي پوه شوي واى؟

4. د زده کړې د موادو ارزونه: کله-کله د کتابونو محتوی هم مشکله او يا بې اړيکې وي. د تدريس په وخت کې هم کله-کله له متنوع موادو څخه کار اخستل ممکن وی، نو دا بايد هم وکتل شي چې کوم مواد ښه کار ورکوي.

قدرمنو ښوونکو!

ایا د ستاسو ټول زده کوونکي په یوه شان تکړه دي؟ څنګه پوهیږي؟

| |
|---|
| په یاد مو وي چه هر څوک د زده کړې وړتیا لري، خو په مختلفو طریقو او د انسانانو د زده کړې د چټکتیا اندازه هم فرق سره لري. |

که یوه زده کوونکي مو څه نه وي زده کړې، څوک به ملامت بولی؟ پخپله زده کوونکی؟ او که تاسې پخپله؟ او که والدین؟ ولې؟

په یوه درس کې د زده کړه لپاره وضع شوو موخو ارزونه: کله چې د یو درسي واحد لپاره موخې ټاکل کیږي نو د هغو د اندازه کولو لپاره هم باید واضحې لارښوونې موجودي وي. موخې کیدای شي د پوهې (معلومات) ترلاسه کول وي، یا یو مهارت حاصلول وي او یا هم یو ډول ذهنیت پیداکول وي. د درس په پای کې ارزونه هم باید د دغوو موخو لاسته راوړلو په اړه وي. مثلاً که د ژبې په درس کې د حضرت عمرفاروق (رض) کیسه د درس موضوع وي، نو د ژبې د یو درس په حیث به لیک، لوست، د لغاتو د ذخیرې زیاتوالي او یا هم ګرامري جوړښتونه د درس معلوماتې موخه وي. برسیره پردې نومونه او نیټې به هم د معلوماتې موخو یوه برخه وي. د اخلاقي ارزښتونو د خپلولو په توګه به د ښه حاکم ښه صفات (زړه سوی، د مسؤلیت احساس او نور) مطلوبه موخه وي، چې له زده کوونکو سره دا ذهنیت پیداشي چې ښه حاکم باید څنګه وي او داچې له غریبو خلکو سره مرسته کول یو اخلاقي کار دی. ښوونکي باید د ارزونې په وخت کې دغه موخې په نظر کې ولري.

## د درسي موخو د ارزولو لپاره ځینې مثالونه په لاندې توګه کیدای شي.

1. د ساده پوښتنو څخه کار اخستل، مثلاً په پورتني مثال کې د لغاتو معنی، متضاد او مشابه لغاتونه او نور. کیدای شي دا کار هم په مختلفو لارو تر سره شي.

2. د زده کړې د تحکیم فعالیتونه هم د ارزونې لپاره کاریدای شي، مثلاً تمثیلول، له درس څخه پوښتنې جوړول، په بل عبارت ویل، کیسه جوړول، کیسې تکمیلول او نور، مثلاً په پورته مثال کې دیوې ډرامې جوړول.

3. عمليي اجرا کول، تحليلول، نتيجه ګيری، پرتلنه، له ټولګي څخه د باندې نمونې ښودل او نور، مثلاً د پورتنۍ کيسې څخه څه نتيجه اخيستل کيږي، څه معنی لري، حضرت عمر فاروق(رض) ولې لومړی د ماشومانو مور ته ځان ور ونه پيژانده؟ زموږ په معاصر تاريخ کې داسې نمونې شته؟ او نور.

**د ښوونکي د خپل تدريس ارزونه**

قدرمنو ښوونکو د لاندې مقولې معنې څه ده:

(په تدريس کې يا دا چې ښوونکي او زده کوونکي دواړه يو څه زده کوي او يا داچې هيڅ يو هم څه نه زده کوي).

لکه چې مخکې وويل شول که ټول زده کوونکي او يا يو څو زده کوونکي درس زده نه کړي، نو دا ددې معنا نلري چې هغه د زده کړې وړتيا نلري، بلکې په دې صورت کې ښوونکی بايد فکر وکړی چې زما په تدريس کې به څه نقص موجود وو- څنګه يې بايد تدريس کړم، چې د ټولو زده شي؟ په بل عبارت ښوونکي بايد د خپل تدريس ارزونه وکړي. د تدريس د ارزولو لپاره د لاندې په شان پوښتنې کولای شو:

- آيا ټول زده کوونکي په اسانه پوه شول، که نه؟ ولې؟ څنګه پوه شم، چې دوی پوه شوي او په اسانی يې زده کړل؟

- ايا موضوع او د تدريس طريقه د زده کوونکو د زده کړې لپاره مناسبې وي؟

- په بل ډول يې څنګه تدريس کړم چې زده کړه اسانه او ښه شي؟

- که د تدريس دغه تجربه بريالی وي، نو نورو ښوونکو ته هم بايد ووايي.

- نه پوهيږم چې څه وکړم او څرنګه يې تدريس کړم، څوک مرسته راسره کولای شي؟

- څنګه به دا پيدا کړم چې زده کوونکي په کوم ډول تدريسولو خوشحاله او ښه زده کړه کولای شي؟ او نور.

ښوونکو ته مشوري:

۱- تاسې د لسان په مضمون کې د سيد جمال الدين افغان د عنوان موضوع تر تدريس وروسته، کوم ډول پوهه ارزوی؟ څنګه يې ارزوی؟ کومې پوښتنې او يا عملي لاره به له تاسې سره مرسته وکړي چې ښه پوه

شی، چې زده کوونکو مو د درس ټاکلې موخې تر لاسه کړي دي؟ معلوماتي او اخلاقي موخې به څه وي او کوم ډول پوښتنې به مناسبې وي؟

۲- که په دې ټولګي کې مو یو څو تکړه زده کوونکي ستړي معلومیدل، ستاسې په نظر به د دوی د ستړتیا علت څه وي؟ که د دوی د ستړتیا کیدلو علت د درس اسانوالي وي، نو تاسې به خپل تدریس څنګه وبولي (مناسب که نامناسب)؟ که په دې ټولګي کې د یو شمیر زده کوونکو درس نه وي زده شوی او دا ځکه چې دوی د لوستلو او له لوست څخه د مفهوم اخستلو په هکله ستونزې درلودې، او تاسې له زده کوونکو څخه غوښتي وي چې کتاب ولولي او درس زده کړي، نو په دې صورت کې به تاسې خپل تدریس څنګه بولی؟